وَ لِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيلاً

ډاکټر : کفايت الله وردک

د کتاب په اړه

د کتاب نوم : د
حج او عمرې لار ښود

لیکوال:
ډاکټر کفایت الله وردګ .

د کمپیوټر چارې:
محمد نذیر (ذبیح)

د چاپ وار : دریم

د چاپ شمېره :
۲۰۰۰ ټوکه

# د لوی او متعال څښتن په نامه

ټول صفتونه او حمدونه هغه ذات لره دي
چې دا دنیا یې له نشت نه شته کړه او
په ټولو مخلوقاتو کې یې غوره مخلوق
انسان پیدا کړو او د ګڼ شمېر نمعتونو
سر بېره یې په انسانانو کې
مسلمانانو ته د اسلام لور ته د هدایت
نعمت ورکړو او دین یې ددوی لپاره د
کامیابي معیار و ټاکلو پدې معنی چې
څوک څومره په دین عمل کوي همدومره
به یې ژوند کامیاب وي او په دین
باندې یو انسان پوره عمل هغه وخت
کولی شي چې وربانډې پوه شي ستاسې په
لاس کې کتاب کې هم کوښښ شوی دی تر څو
په ساده پښتو ژبه د حج د اداء کولو
طریقه خپلو پښتنو ورونو ته پداسې
توګه کېښودله شي ترڅو هغوی ترینه په
اسانه سره زده کړه وکولی شي سره ددې
چې زما نه وړاندې هم ډېرو پښتنو ورو
نو د حج په اړه لیکنې کړې دي الله تعالی
دې ورته اجر ورکړي خو زه په خپل
کتاب کې غواړم چې په اسانه سره خپل
پښتانه پوه کړم بغیر ددېنه چې زه د
اوږدو مسئلو خواته لاړ شم او که ژون
وفا وکوله په پښتو باندې خپلو پښتنو

ورونو ته داسې نور مضامين وړاندې کول خپل فرض ګڼم پدې هيله چې پښتانه ورونه به يې خوښ کړي او الله تعالی به ماته د خپل کار مزدوري له خپلو خزانو څخه راکړي ، او د خپلو پښتنو ورڼو څخه مې غوښتنه ده چې د دقوم ترقي دهغوی د ژبې په ترقي کې ده او پدې بنسټ ټول پښتانه د خپلې خوږې ژبې لپاره د کار کولو لوري ته را بلم چې ترڅو د خپل غريب قوم لپاره د دوی په ژبه کې خدمت وکوي او هغه ورونه چې کولی شي زمونږ سره ددې غريب قوم په خدمت کې ملګري وکوي هغوی کولی شي زمونږ د کوم کتاب مصرف ټول او يا پکې يو څه برخه په غاړه واخلي نو زمونږ سره دې رابطه وکوي د الله تعالی نه ورته اجر او لوی عوض په دنيا او آخرت کې غواړم .

د ټولو ورونو د کاميابۍ او
سوکالۍ په هيله
ډاکټر کفايت الله وردګ
E-mail : phdwardak@gmail.com

# فهرست

فهرست .................................................... أ
د لوی او مه تعالی الله په نامه.................................. 1
حج څه وخت فرض شوی دی ؟ ............................ 2
د بیت الله طواف.......................................... 4
رمل ( په طواف کې د پهلوانانو په څېر تلل) ....... 4
د حج لپاره یو څو ادبونه : ................................ 8
د حج په بحث کې یو څه الفاظ چې زیات
استعمالیږي............................................................ 9
له کور نه روانېدل......................................... 15
د حج ډولونه............................................................ 20
په حج کې فرض کارونه........................................ 21
د عمرې ضروري کارونه........................................ 22
احرام ............................................................ 23
د احرام قیدونه............................................................ 29
ښځینه او احرام ............................................................ 30
د حاجیانو معلم............................................................ 30
جده............................................................ 31
حرم............................................................ 32
مکې مکرمې ته ننوتل ............................................ 33
په مسجد حرام کې موجودیت او طواف.................... 36
طواف (لمړی عمل) ............................................ 37
د طواف طریقه............................................................ 38
د طواف دعاګانې ............................................ 41

په ملتزم کې دا دعاوې ل سنت دي ...................... 51
په طواف کې اضطباع او رمل ............................ 54
د صفا او مروه په مینځ کې سعی (تلل را تلل)
کول................................................................... 56
د سعی کولو سنت طریقه...................................... 57
مروسته د سعی نه ................................................ 60
کله چې مروه ته ورسیږي نو دا آیت به ولولي ... 62
منی ته سفر ............................................................ 66
دوهم ورځ (دعرفات ورځ) د حج ............................ 70
د عرفات میدان ...................................................... 71
په عرفات درېدل ..................................................... 72
د عرفات څخه مزدلفې ته حرکت کول.............. 75
د حج دریمه ورځ (یوم النحر د ذی الحجې لسم) ...... 76
د مزدلفې نه منی ته حرکت کول ...................... 77
د طواف نه مروسته د حج لپاره د صفا او مروه په
مینځ کې تلل را تلل (سعی) ............................ 81
د حج څلرمه ورځ (د ذی الحجې ۱۱یولسم)............ 82
د حج پنځمه ورځ (د ذی الحجې دولسم) .................. 83
د منی نه مکې ته روانېدل ................................. 83
طواف وداع (د خدای په امانی طواف)........................ 84
په مکه مکرمه کې د دعا ځاېونه.......................... 84
په مکه کې محترم (دورتلو ور) ځایونه ........... 86
په مدینه منوره کې حاضري ورکول ................... 90
د جنت البقیع زیارت ........................................ 103
اُحد ............................................................... 104

په مدينه منوره او دهغې په چاپېريال کې جوماتونه ........................................................ 106
مسجد قباء ........................................................ 106
مسجد ذی الحليفة ........................................................ 108
مسجد القبلتين ........................................................ 109
مسجد جمعه ........................................................ 111
مسجد العنبرية ........................................................ 112
مسجد مصلى (مسجد غمامه) ........................................................ 113
مسجد سُقيا ........................................................ 114
مسجد احزاب / فتح ........................................................ 115
مسجد ابي بكر ........................................................ 115
مسجد علی ........................................................ 116
مسجد ذباب ........................................................ 116
مسجد بني ظفر / مسجد بغل ........................................................ 117
مسجد بني حرام ........................................................ 117
مسجد اجابه ........................................................ 118
جد اُبیمس ........................................................ 118
مسجد ابي ذر ........................................................ 118
بير عريس ........................................................ 120
بير روما ........................................................ 120
بير غرس ........................................................ 120
بير بوسه ........................................................ 120
بير حياة ........................................................ 121
بير حن ........................................................ 121
د حج له سفر نه بېرته کورته راګرځېدل .... 121

جـ نايـ ات ........................................... 124
د احرام جـ نايـ ات........................................ 126
د جامو اړوند د جـ نايـ ات.................................. 126
عطر لـ ګول ............................................ 127
تـ يل لـ ګول ............................................ 128
سر خرېـ ل يـ ا وېـ ښد ته پـ رې کـ ول ........................ 128
د نـ وکـ ونـ و پـ رې کـ ول .................................. 129
سـ پيړې مړې کـ ول او يـ ا لـ ه بـ دن نـ ه لـ رې کـ ول....... 130
پـ ه احرام کـ ې ښکار کـ ول ............................... 130
د حرم پـ ه اړه جـ نايـ ات .................................. 131
د احرام پـ ه حالـ ت کـ ې جماع او يـ ا نـ ور دا سې کـ اروندـ ه
کـ ول...................................................... 131

# د لوی او متعال الله په نامه

ټول اهل اسلام که پخواني دي او که نوي دي ، که عرب او که عجم پدې متفق دي چې حج د اسلام له پنځو ارکانو څخه یو دی او لکه چې معلومه ده حج هم لکه د نورو عبادتونو په څېر عبادت دی او پدې کې هم خاص کارونه دي او دا ټول کارونه لکه احرام، طواف، سعی ، په عرفات درېدل او داسې نور په هماغه طریقه کول په کار دي په کومه طریقه باندې چې شریعت مونږ ته امر او رسول الله صلی الله علیه وسلم لار ښونه کړي وي او باید مونږ پوه شو چې د حج د شروع نه تر آخر پورې د ټول حج نه مطلب د الله تعالی ذکر او عبادت کول دي لکه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي چې په حج کې طواف د بیت الله ، سعی د صفا او مروه او د جمرو ویشتل صرف د الله تعالی د ذکر کولو لپاره مقرر کړل شوي دي .

نو معلومه شوه دا چې اصلي غرض په حج کې دې ځایونو ته ورتلل نه بلکه په دې ځایونو کې د الله تعالی ذکر او د هغه عبادت کول دي لکه حضرت عمر رضی الله عنه چې کله حجر الاسود ښکل کوله نو یې ورته وویل که چېرته ما رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وای لیدلی چې ته یې ښکل کولې نو ما به نه وې ښکل کړې ، پدې خبره سره هغه ښکاره کړه

زمونږ په شریعت کې چې په څومره عبادتونو باندې امر شوی دی هغه د عقل مطابق دي ځکه چې په عبادت کې اصل خبره د خپل معبود په مخ کې سر ښکته کول او د هغه تعظیم کول دي او په مانځه کې هغه ښکاره دی ، په زکات کې چې د بې وزله او غریبانو سره څومره همدردي ده هغه هم ښکاره ده ، او په روژه کې د نفس د خواهشاتو ماتول او خپل مولی ته تابع کول دي د حج هم د ځینو عملونو حکمت په روایاتو کې ښکاره کړل شوی دی د ځینو حکمت او د مشروعیت وخت ته یې ستاسې فام را اړوم .

## حج څه وخت فرض شوی دی ؟

الله تعالی حضرت ابراهیم علیه السلام ته فرمایي : و اذن فی الناس بالحج یاتوک رجالا و علی کل ........ سورة حج آیة ۲۷

ددې آیت په تفسیر کې امام ابن کثیر رحمه الله فرمایي چې الله تعالی حضرت ابراهیم علیه السلام ته وویل چې په خلکو کې اعلان وکوه چې ټول خلک دې ددې بیت الله چې مونږ یې تاته د جوړولو امر وکړو او تا جوړه کړه حج ته راشي نو حضرت ابراهیم علیه السلام ورته وویل چې زه خو به اواز وکوم نو زما اواز به ټولو خلکو ته څنګه رسیږي؟ الله

تعالى ورته وويل چې ته اواز وكوه او رسول به يې زه وكوم .
نو حضرت ابراهيم عليه السلام د يو قول له مخې په مقام ابراهيم كې و درېد، د يو قول له مخې چې په حجر اسود باندې، يا په صفا باندې ، او د يو قول له مخې د ابي قبيس غره په سر باندې و درېد او اواز يې وكړو : اى خلكو ستاسې لپاره ستاسې رب په زمكه كې كوټه جوړه كړه حج ته يې راشئ دا اواز الله تعالى ټولو مخلوقاتو ته ورسولو او د انسانانو ټولو ارواحو ته ورسېدو او د چا چې په حج كې قسمت شوى دى هغوى په هغه وخت كې ورته وويل چې لبيك اللهم لبيك ... همدا مضمون د حضرت ابن عباس، حضرت عكرمه رضى الله عنهم څخه هم را نقل شوى دى.
دا خو د اسلام نه مخكې د حج فرضيت وو او دا چې زمونږ په دين كې څه وخت فرض كړل شو پدې كې اختلاف دى ويل شوي دي چې د هجرت په شپږم كال، په اوم كال ، په نهم كال او دا هم ويل شوي دي چې په لسم كال د هجرت خو امام ابن قيم رحمه الله په خپل كتاب زاد المعاد كې په يقين سره ويلي دي چې د هجرت په شپږ او اوم كې نه بلكه په نهم يا لسم كال كې فرض كړل شو ځكه چې پدې كې د چا هم اختلاف نشته چې رسول الله صلى الله

علیه وسلم صرف یو حج کړی دی او هغه ته حجة الوداع وایي او دا حج د هجرت په لسم کال شوی دی او چې کله د حج د فرضیت حکم نازل شو نو سم د لاسه رسول الله صلی الله علیه وسلم حج لوري ته مخه کړه او بغیر د وروسته کولو نه یې حج اداء کړو .

## د بیت الله طواف

د بیت الله نه ګرد تاوېدل (طواف کول) دا هم د حضرت ابراهیم علیه السلام د زمانې نه وو لکه الله تعالی چې فرمایي : و عهدنا الی ابراهیم و اسمعیل ان طهرا بیتی للطائفین و العاکفین .. سورة بقرة آیة ۱۲۵ ددې آیت نه هم دا ښکاره کیږي چې طواف کول هم د حضرت ابراهیم علیه السلام له زمانې څخه موجود او مشروع وو .

## رمل ( په طواف کې د پهلوانانو په څېر تلل)

کله چې حاجي یا عمره کونکی مکې ته راشي د لمړي ځل لپاره طواف کوي نو رمل به پکې کوي صرف د سړیو لپاره او ښځې به رمل پکې نه کوي او دا رمل له هغه وخت نه شروع شو چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم او دهغه صحابه رضی الله تعالی عنهم مکې ته راتلل نو د مکې مشرکانو به ویل چې اوس داسې خلک راځي

چې هغوی د یثرب (مدینې) تبو وهلي دي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وو ته د رمل کولو حکم وکولو چې دا ښکاره کړي چې دا اوس هم تکړه دي د کولو تفصیل او طریقه به یې وروسته راشي .
د زمزم اوبه او د صفا او مروه په مینځ کې تګ را تګ کول .
د صحیح بخاري په روایت کله چې حضرت ابراهیم علیه السلام خپله کور ودانه د مکې مکرمې په خوا کې د حضرت اسمعیل علیه السلام سره چې نوی پیدا شوی ماشوم وو پرېښوده او یو څه اوبه او یو څه خورما یې ورسره پرېښودې او ترې روان شو او داسې وخت وو چې د مکې مکرمې سره به هېڅوک هم نه وو نو دا په حضر ت ابراهیم علیه السلام پسې ور روانه شوه او څو ځله یې پسې اواز وکړو چې ته دلته مونږ چا ته پرېږدې؟ خو هغه ورته هېڅ التفات ونه کولو بیا یې پوښتنه ترې وکوله چې آیا تاته الله داسې حکم کړی دی؟ ده ورته وویل هو! بیا دې مبارکې وفرمایل بیا مو نو الله نه ضائع کوي دا بېرته د حضرت اسمعیل علیه السلام لوري ته را وګرځېده او حضرت ابراهیم علیه السلام وړاندې لاړو او چې ددوی نه پناه شو هلته و درېدو او کعبې خواته یې مخ کړو او لاسونه یې

پـورتـه كـړل او پـدې الـفـاظو يـې دعا وكـولـه :

ر ذي زرع عندربـ نا إني أ سكنت من ذريـ تي بـ واد غي بـ يـ تك الـمحرم ربـ نا لـ يـ قـ يموا الـ صلاة فـ اجعل أفـ ئدة من الـ ثمرات لـ علهم يـ شكرون من الـ ناس تـ هوي إلـ يهم وارزقـ هم

حضرت هاجر عليها الـسلام بـه لـه هغه لـوښي نـه اوبـه څښلې او خپل مـاشوم حضرت اسمعيل عليه الـسلام تـه بـه يـې هم تـرې وركـولـې تـردې چې پـه لـوښي كـې اوبـه خلاصې شوې او بـيـا حضرت اسمعيل عليه الـسلام تـږى شو او مـور يـې وارخطا شوه او يـو بـل لـوري تـه يـې د ابـو لـټون شروع كړو نـېږدې تـپـه يـې ورسره صفا ولـيـده هغې تـه يـې ورمـنـډې كـړې او پـرې وختـلـه شا او خوا تـه يـې وكـتـل كـه څوك ښكـاره شي يـا د ژونـد څه نـښه پـه نـظر راشي خو هېڅ شى نـه ښكـاره كـېدل بـيـا را ښكـتـه شوه او چې د مـيـلـيـنـو اخضريـنـو سـاحې تـه راغـلـه دلـتـه ژوره كـنـده وه او چې دا مـبـاركـه پـكـې ور ښكـتـه شوه نـو ددې وجې نـه چې مـاشوم يـې لـه نـظر نـه غيـب شو نـو دې تـيـزه مـنـډه كـړه او مـروه تـه ورسېده او هلـتـه د تـپـې سر تـه وختـلـه او شاو خوا تـه يـې وكـتـل خو بـيـا هم هېڅ شى پـه نـظر را نـغـلـل او دا كـوښښ يـې بـيـا بـيـا وكـولـو د يـوې تـپـې نـه بـلـې تـه راغـلـه تـرڅو كـه مـمـكـن څوك را ښكـاره شي .

چې آخري ځل مروه ته وختله نو يو اواز يې تر غوږ شو ويل ته چُپ .... (ځان ته يې ويل) ترڅو دا اواز صحيح کړي چې دا څه شی وو بيا يې اواز واوريد نو دخپل بچي د ځای خواته يې مخه کړه چې هلته يې د زمزم پر ځای پرښته وليده چې په زمکه يې وزر ووهلو نو هلته چينه را پورته شوه چې اوبه ترې را خوټېدې او په يو حديث کې دي چې کله اوبه را خوټېدې نو دې مبارکې هغه سره تخته کولې او زم کولې يې نو ځکه ورته زم زم ويل کيږي نو هغه زمزم تر اوسه پورې د ټولې دنيا لپاره زمزم چينه پاتې شوه چې له هغه وخت نه تر اوسه ترېنه په کروړونو خلکو اوبه و څښلې او دا چينه په الهي قدرت په وچه زمکه کې را هماغسې را پورته کيږي لکه د مخکې په څېر داسې د حج مهمې او عمده خبرې ټولې د حضرت ابراهېم عليه السلام د زمانې نه مشروع وې خو بيا په مينځ کې مشرکانو ځينې خبرې پکې له ځانه پيدا کړې وې نو چې کله رسول الله صلی الله عليه وسلم راغلو هغه خبرې چې پکې نوې پيدا شوې وې هغه يې ترې لرې کړې او بېرته يې حج اسلامي شريعت ته پاک برابر کړو او چې کله يو حاجې په پاک نيت سره او په ښه زړه سره د حج اراده وکوي او ټول ارکان او شرائط يې

په سمه توګه تر سره کړي نو امید دی چې الله تعالی به یې ورته قبول کړي او حج مبرور به یې ورته وګرځوي ستاسې په لاس کتاب کې غواړم چې د هغه کسانو لپاره چې د حج او عمرې په اراده وي یو څو خبرې کېږدم ترڅو هغوی ته یې په سمه توګه اداء کول اسانه شي او ما ته الله تعالی د خپل کوښښ اجر راکړي .

## د حج لپاره یو څو ادبونه :

۱. حاجي به د حج نیت صرف د الله د رضا لپاره کوي کوښښ به کوي چې خپل حج له ریا او ښکارولو څخه وساتي ځکه ریا ته وړوکی شرک ویل ویل شوی دی .

۲. حاجي باید دې تللو نه مخکې د ټولو ګناهونو څخه توبه وباسي او که د چا په حق یې څه تېری کړی وي هغه دې خپلو کسانو ته وسپاري او له هغوی نه د بښنه وغواړي.

۳. خپله ټوله توجه به الله خوا ته اړوي او د دنیا له ټولو شیانو څخه به زړه ټولوي .

٤. کوښښ به کوي چې په ټول ژوند کې په خاصه توګه د حج په سفر او مصرف باندې پاکه او حلاله دنیا ولګوي .

٥. د سفر په دوران کې به د الله تعالی ذکر ډېر زیات کوي .

٦. د احرام د جامې د آغوستلو په وخت کې به فکر کوي لکه ده چې کفن آغوستی

وي او هروخت به يې زړه د الله د ياد سره تړلی وي .
٧. په سفر کې به يې لوی غرض صرف د الله تعالی رضا وي او چې کله له خپلوانو او د وستانو سره خدای په اماني کوي فکر به کوي چې له دوی نه د الله د رضا لپاره جدا کيږي .
٨. د سفر په وخت به فکر کوي لکه دا چې دده د ژوند آخرنی سفر وي او که په زړه کې د آخري سفر لپاره تيار نه وي نو همدا يې د تياري وخت دی .
٩. کوښښ به کوي چې د اسلام د مقدساتو سره بې ادبي ونه کوي .
١٠. فکر به کوي چې طواف لکه مونځ داسې دی داسې د حج هر رکن عبادت دی او دې ځايونو ته په ورتلو کې مقصود د الله تعالی ذکر دی .

## د حج په بحث کې يو څه الفاظ چې زيات استعماليږي .

١. فوات : په لغت کې پاتې کېدلو ته وايي او د حج په بحث کې ترې مطلب د حج پاتې کېدل وي چې په عرفات باندې د نه درېدو له امله پاتې شي .
2. الإحصار: هغه مانع ته وايي چې د حج يا عمرې د کولو نه مانع جوړ شي لکه بيماري يا دښمن.

3. الآفاقي: هغه کس ته وايي چې د ميقات نه بهر اوسيږي ددې په بدل کې بل لفظ دی حرمي ورته وايي هغه کس وي چې هغه د حرم په علاقه کې ژوند کوي .

4. الاستلام: د حجر اسود ښکلولو او يا دهغې سره لاس لګولو ته وايي .

5. الاضطباع: دېته وايي چې د احرام په حالت کې داحرام څادر په چپه اوږه باندې واړول شي او تر ښۍ اوږه لاندې وويستل شي .

6. التلبية: هغه الفاظ دې چې حاجي او عمره کونکی يې د احرام په حالت کې وايي : لبيك اللهم لبيك، لبيك لا شريك لك لبيك، إن الحمد والنعمة لك والملك، لا شريك لك.

7. الإحرام: د احرام په حالت کې داخلېدلو ته هم وايي ، او پخپله هغه جامې ته هم وايي چې کومه د احرام په وخت کې آغوستله کيږي ، او هغه حالت ته هم وايي چې په کوم حالت کې حاجي او عمره کونکی تر څه شرطونو لاندې وي چې تفصيل به يې په خپل ځای راشي.

8. المواقيت: هغه ځايونه دي چې شريعت ددې لپاره ټاکلي چې دهغې نه به څوک د حرم لوري ته د احرام نه بغير نه ور ننوزي هغه ذو الحليفه ، جحفه، قرن منازل، يلملم ، ذات عرق دي

9. الإفراد: چې صرف د حج لپاره څوک احرام وتړي دېته افراد ویل کیږي
۱۰. التمتع : د حج نه وړاندې عمره کول او بیا له احرام نه ځان حلالول او د آتم په ورځ د حج لپاره بیا د حرم نه احرام تړلو ته تمتع وایي .
۱۱. القِران : دېته وایي چې څوک د حج په شپو کې د حج او عمرې دواړو لپاره یو احرام وتړي او یا د حج په شپو کې صرف د عمرې لپاره احترام وتړي او بیا احرام مات نه کړي او په همدې احرام سره حج هم وکوي .
۱۲. العج و الثج : عج په تلبیه باندې اواز پورته کولو ته وایي او ثج د قربانۍ د وینې تویولو ته وایي .
۱۳. الافاضة : د حج نه را ښکته کېدلو ته افاه وایي .
۱٤. السعی : د صفا او مروه په مینځ کې تلو را تلو ته سعی ویل کیږي .
۱٤. میلان اخضران : د صفا او مروا د لارې په مینځ کې دوې شنې نښې دي چې سعی کونکی د هوی دواړو په مینځ کې یو څه تیز ځي .
۱٥. طواف: د مکې مکرمې نه را څرخېدلو ته طواف وایي د حج او عمرې په طواف کې اوه ځله را تاوېدل ضروري وي او نفلي چې څومره څوک کولی شي .

۱٦. الرمل : د طواف په اولودريو شوطونو کې لکه د پهلوانانو په څېر تلل نېږدي نېږدي قدمونه کېښودل او اوږې ښورولو ته رمل وايي په څه وخت کې به کيږي تفصيل به يې په خپل ځای راشي.

۱۷. طواف القدوم: هغه طواف دی چې کله حاجي اول مکې ته راشي اداء کوي يې او بالاتفاق سنت دی .

۱۸. طواف افاضة: هغه طواف دی چې دحج رکن دی او د عرفات نه د راتلو نه وروسته کيږي .

۱۹. طواف الوداع: د خدای په امانی طواف هغه طواف دی چې حاجې يې هغه وخت کوي چې کله يې د تلو اراده وي .

۲۰. يوم الترويه : د ذی الحجې د مېاشتې آتمه ورځ ده دا هغه ورځ ده چې په کومه ورځ حج شروع کيږي او پدې ورځ حاجيان منی ته روانيږي .

۲۱. يوم القر : دا د اختر د ورځې په سبا يعني د ذی الحجې يولسمه ورځ ده پدې ورځ حاجيان په منی کې پاتې کيږي (قر له قرار نه دی) او د رمی تر پوره کېدلو پورې دلته قرار کوي (پاتې کيږي) .

۲۲. يوم النحر: دا داختر ورځ ته وايي ځکه نحر ذبح ته وايي او پدې ورځ

باندې خلک قرباني کوي او مالونه حلالوي .

۲۳. يوم النفر : نفر خپرېدلو ته وايي ددې امله د ذی الحجې دولسم ته يو م النفر وايي چې حاجيان رمی ختمه کړي نو له منی څخه خپريږي .
۲٤. رمی الجمار : د شيطانانو د نښو ويشتلو ته رمی الجمار وايي او پوره تفصيل يې راروان دی .
۲٥. الهدی: هغه د قرباني څاروي ته وايي چې حاجي يې له ځان سره د قرباني کولو په موخه حرم ته بوزي .
۲٦. تقليد الهدی: د قرباني د څاروي په غاړه کې څه پوستکی يا بل څه ځړول دي تردې چې خلک پوه شي چې دا د قرباني مال دی .
۲۷. فديه : د شويو غلطيو په بدل کې ګالل شوې جزاء ته ويل کيږي تفصيل يې انشاء الله د کتاب په آخر کې د جناياتو په بحث کې راروان دی .
۲۸. البدنه: هغه لويه قرباني ده چې د کومې غلطي په بدل کې کيږي او دا لويه قرباني وي او په خاصه توګه دا لفظ د اوښ نارينه او ښځينه لپاره کارول کيږي ، او ځينې وايي چې د غوايه او اوښ دواړو لپاره کارول کيږي .
۲۸. مزدلفه : هغه ځای دی چې حاجيان له عرفات نه راښکته شي نو دلته راځي .

۲۹. مقام ابراهيم : هغه د شيشې نه جوړه کړل شوې پنجره ده چې د بيت الله دروازې ته مخامخ جوړه شوېده او د ننه پکې هغه تيږه پرته ده چې ابراهيم عليه السلام چې کله بيت الله جوړوله نو پدې کانې ورته دريدلی وو .

الكعبة المشــرفة

( قبلة المسلمين )



اوس مو فام را اړوم د حج شروع کولو ته .

## له کور نه روانېدل

محترمو حاجیانو تاسې ډېر د ښه قسمت مالکان یاست چې الله تاسې ته هغه مقدس او پاک ځای ته د ورتللو لپاره اسباب برابر کړل او تاسې ته یې د رسو الله صلی الله علیه وسلم د زیارت کولو موقع درکړه ، مکه مکرمه د الله تعالی د تاج او تخت تر سیوري لاندې ده او ستاسې حرکت د همدې مبارک مرکز په لوري دی او د رسول الله صلی الله وسلم زیارت د برکتونو او نبوت د انوارو ځای دی د رسو الله صلی الله علیه وسلم مرقد منور ته د ورتللو خواهش ستا اوس پوره کیږي نو ځکه ددې سفر په شروع کې د الله تعالی عبادت او پوره بندګي ته مخه کړه او په زړه کې د بیت الله او د رسول الله صلی الله وسلم د مبارکي روضې مینه او د الله تعالی د ټولو د احکامو د عملي کولو جذبه په زړه کې پیدا کړه او د الله تعالی د هدایت لوري ته کوښښ کوه او له خپل کور نه چې سفر شروع کوې په داسې فکر یې شروع کړه لکه دا چې ستا په ژوند کې ستا آخرنی سفر وي او د کور نه د وتلو په وخت کې ښه خبره داده چې غریبان او فقیران خلک په خوراک باندې

و نازوې او په کوم وخت کې چې ته له کور نه وزې که دا هغه وخت نه وي چې په کوم کې مونځ مکروه وي نو د وتلو په وخت کې دوه رکعته مونځ وکوه په اول رکعت کې الحمد لله او سورت قل یا ایها الکفرون او په دوهم رکعت کې سورت اخلاص ووایه ددې مانځه د ختمېدلو نه وروسته د الله تعالی نه د کمک غوښتنه وکوه او که په یادو دې زده وي نو لاندې دعا ولوله .

اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الصَّاحِبُ فِى السَّفَرِ ۱ وَالْخَلِيْفَةُ فِى الْاَهْلِ وَالْمَالِ ۱ اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ فِىْ مَسِيْرِنَا هٰذَا الْبِرَّ وَالتَّقْوٰى،وَمِنَ الْعَمَلِ مَا تُحِبُّ وَ تَرْضٰى، اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ اَنْ تَطْوِىَ لَنَا الْاَرْضَ وَ تُهَوِّنَ عَلَيْنَا السَّفَرَ وَارْزُقْنَا فِىْ سَفَرِنَا هٰذَا السَّلَامَةَ فِى الْعَقْلِ وَالدِّيْنِ وَالْبَدَنِ وَالْمَالِ وَالْوَلَدِ ۱ وَ تُبَلِّغَنَا حَجَّ بَيْتِكَ الْحَرَمِ، وَزِيَارَةَ نَبِيِّكَ عَلَيْهِ اَفْضَلُ الصَّلٰوةِ وَالسَّلَامِ ۱ اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ لَمْ اَخْرُجْ اَشَرًا وَّ لَا بَطَرًا وَّ لَا رِيَاءً وَّ لَا سُمْعَةً ۱ بَلْ خَرَجْتُ اِتِّقَاءَ سَخَطِكَ وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِكَ وَ قَضَاءً لِفَرْضِكَ وَ اِتِّبَاعًا لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ شَوْقًا اِلٰى لِقَائِكَ، اَللّٰهُمَّ فَتَقَبَّلْ ذٰلِكَ وَصَلِّ عَلٰى اَشْرَفِ عِبَادِكَ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّ اٰلِهٖ وَ صَحْبِهٖ اَجْمَعِيْنَ

ترجمه: یا الله ته په سفر کې ښه ملګرى او په کور کې د اهل او مال د ساتنې لپاره خلیفه یې الله پدې سفر کې مونږ لتا نه د ښه عمل او د تقوى د توفیق غوښتنه کوو او لتا نه د داسې عمل

توفيق غواړو چې هغه ستا خوښ شي او ستا د رضا سبب وګرځي الله مونږ لتا نه غواړو چې زمکه زمونږ لپاره را ونغاړه (مسافه راته کمه کړه) زمونږ سفر راته اسانه کړه پدې سفر کې زمونږ د عقل، بدن ، دين او مال حفاظت وکوه او مونږ د خپل کور حج ته ور ورسوه او د رسو الله صلی الله عليه وسلم زيارت مونصيب کړه ای الله زه د فخر کولو او ځان ښکاره کولو په نيت نه يم راوتلی بلکه ستا د رضا په طلب ، ستا د غصې نه د ځان ساتلو، ستا د فريضې د اداء کولو او د رسو الله صلی الله عليه وسلم د سنتو د پر ځای کولو، او ستا د ملاقات د شوق په بنياد راوتلی يم يا الله دا لما څخه قبول کړې او درود ولېږې د مخلوقاتو په بهترين انسان حضرت محمد صلی الله وسلم او دهغه په کورنۍ او ملګرو ټولو باندې.

وروسته ددې چې ته د جای نماز (مسالې) نه پاڅېدې چې مونځ دې هم وکولو او پورتنۍ دعا دې هم ولوستله نو لاندېينۍ دعا به ولولې .

اَللّٰهُمَّ بِكَ اِنْتَشَرْتُ وَاِلَيْكَ تَوَجَّهْتُ وَ بِكَ اعْتَصَمْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ[1] اَللّٰهُمَّ اَنْتَ ثِقَتِيْ وَاَنْتَ رَجَائِيْ. اَللّٰهُمَّ اكْفِنِيْ مَا اَهَمَّنِيْ وَ مَا لَا اَهْتَمُّ بِهٖ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ عَزَّ جَارُكَ لَا اِلٰهَ غَيْرُكَ. اَللّٰهُمَّ زَوِّدْنِي التَّقْوٰى وَاغْفِرْلِيْ ذُنُوْبِيْ وَ وَجِّهْنِيْ اِلَى الْخَيْرِ

**اَيْنَمَا تَوَجَّهْتُ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَ كَاٰبَةِ الْمُنْقَلَبِ وَالْحَوْرِ بَعْدَ الْكَوْرِ وَ سُوْءِ الْمَنْظَرِ فِی الْاَهْلِ وَالْمَالِ۔**

ترجمه : الله ستا په نوم راوتلی يم او تاته مې مخه کړېده او پر تا مې باور دی او پر تا مې توکل کړی دی صرف پر تا مې اعتماد دی او تاته مې تمه ده الله زما ټول مشکلات هغه چې زه يې په اړه فکر من وم او که نه وم او هغه چې ته لما ځخه پرې ښه خبرې وې حل کړه هغه چې ستا په حفاظت کې راشي هماغه عزتمن شي او ستا نه بغير لائق د عبادت نشته الله ماته د تقوی توښه راکړه او زما ګناهونه راته معاف کړه هرچرته چې ځم په مخه مې ښه راولې الله زه پر تا باندې پناه غواړم له مشکلاتو د سفر ځخه او د بدو را ګرځېدلو ځخه الله زه پناه غواړم د غربت نه چې وروسته له راحت نه وي او الله زه په تا باندې پناه غواړم د مصيبتونو ځخه په اهل او مال کې .

ددې دعا نه وروسته چې کله د کور درشل ته ورسيږي نو سورت (انا انزلنا) به تلاوت کړې او کله چې له کور نه بهر شې نو لاندې دعا به ولولې .

**بِسْمِ اللهِ وَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ ؕ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ ؕ اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنِیْ لِمَا تُحِبُّ وَ تَرْضٰی وَاحْفَظْنِیْ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ۔**

ترجمه : د الله په نوم سره بهر را ووتلم د الله تعالی نه بغیر د چا طاقت او قدرت نشته په الله تعالی مې توکل کړی دی یا الله ماته دهغه څه توفیق راکړه چې ته پرې رضاء کېږې او الله ما د رټل شوي شیطان د شر څخه په امن وساته .

کله چې ته سرک ته برابر شوې نو بیا د ا لاندېنی دعا ولوله .

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ اَنْ اُضِلَّ اَوْ اُضَلَّ اَوْ اَظْلِمَ اَوْ اُظْلَمَ اَوْ اَجْهَلَ اَوْ یُجْهَلَ عَلَیَّ بِسْمِ اللهِ تَوَكَّلْتُ عَلَی اللهِ لَا حَوْلَ وَ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَلِیِّ الْعَظِیْمِ ط ١

اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنِیَ لِمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰی وَاعْصِمْنِیْ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ.

ژباړه : الله زه پر تا باندې پناه غواړم لدې نه چې زه بې لارې شم او یا بې لارې کړل شم او له دې نه چې ظلم وکړم او یا را باندې ظلم وکول شي یا دا چې نا پوه شم او یا نا پوه کړل شم د الله په نوم سره شروع کوم په الله باندې توکل کوم د لوی الله نه بغیر د چا سره قوت او قدرت نشته یا الله ماته د هغه څه توفیق راکړه چې ته پرې خوشحالېږې او ما د رټل شوي شیطان څخه وساته .

کله چې د خپلوانو ملګرو او همسایه ګانو څخه خدای په اماني اخلې نو هغوی

ته چې لاس ورکړې نو لاس ورسره وښوروه او لاندې دعا ووله .

اَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَكَ وَ اَمَانَتَكَ وَ خَوَاتِيْمَ عَمَلِكَ وَ غَفرَ ذَنْبَكَ وَ يَسَّرَ لَكَ الْخَيْرَ حَيْثُمَا كُنْتَ وَ زَوَّدَكَ اللهُ التَّقْوٰى وَ جَنَّبَكَ الرَّدٰى۔

ژباړه: زه ستا دين ، ستا امانت، ستا د عملونو خاتمې الله ته سپارم الله دې ستا ګناهونه معاف کړي الله د ستا کارونه درته اسان کړي ته چې هرچېرته وې الله تعالى دې درته د تقوى توښه درکړي او الله دې تا له تباهي څخه وساتي.

کله دې چې سفر شروع کړو نو بسم الله ووايه او راتلونکې دعا ووله .

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَ مَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ وَ اِنَّا اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ

ژباړه: ټول حمد او ثنا ده هغه ذات لره چې مونږ ته يې زمکه مسخره کړيده سره ددې چې مونږ ددې لائق نه وو او بېشکه مونږ به ټول د الله تعالى لوري ته ورګرځو.

## د حج ډولونه

حج په درى ډوله دى :

١١١١١٤٤٤٤المړى هغه دى چې له ميقات (هغه ځاى چې له کوم ځاى نه احرام تړل

کیږي) نه احرام صرف د حج لپاره واغوستل شي او عمر له حج سره یاده نه کړل شي دې ډول حج ته افراد وایي او هغه کس چې دا ډول حج اداء کوي هغه ته مفرِد وایي.

دوهم هغه ډول دی چې له میقات نه احرام د حج او عمرې دواړو لپاره آغوستل کیږي دېته حج قِران وایي او هغه څوک چې دا حج اداء کوي هغه ته قارِن ویل کیږي .

دریم ډول هغه حج دی چې حج او عمره دواړه خو په سفر کې سره یو ځای کړل شي لکن د میقات نه احرام د عمرې لپاره وتړل شي حاجي چې کله مکې مکرمې ته ورسیږي عمره اداء کړي او سر وخریي او احرام لرې کړي په آتم د ذی الحجې باندې بیا د حج لپاره احرام وتړي دې ډول حج ته تمتع ویل کیږي او هغه کس چې دا ډول حج اداء کوي هغه ته متمتع ویل کیږي .

په عامه توګه تمتع حج اسان حج دی لکن هغه کسان چې په احرام کې ځان له محرماتو څخه او د احرام له موانعو څخه ساتلی شي دهغوی لپاره قِران هم اسانه دی .

## په حج کې فرض کارونه

١ اول: احرام آغوستل او تلبیه ویل .

دوهم : په عرفات درېدل (دا د عرفات په ميدان کې د ذی الحجې په نهم باندې تر لمر لوېده پورې درېدل دي)

دريم : طواف (چې په لسم ، يولسم، او دولسم د ذی الحجې باندې کيږي)

په حج کې واجب کارونه

اول: دعرفات نه د راستنېدلو څخه وروسته په مزدلفه کې قيام کول او همدلته د ماښام او ماسخوتن مونځ په يو ځای سره اداء کول .

دوهم :د صفا او مروه په مينځ کې سعی کول.

دريم: جمرې ويشتل .

څلرم: د حاجې متمتع او حاجي قارِن لپاره قرباني کول .

پنځم : سر خرېل

شپږم : طواف زيارت کول

# د عمرې ضروري کارونه

(عمرې ته وړوکی حج هم ويل کيږي)

١اول: نيت کول د احرام آغوستلو په وخت کې او تلبيه ويل

دوهم : طواف کول.

دريم : د صفا او مروه په مينځ کې سعی کول .

د سر خريل .

# احرام

۲۲۲۲۲۲۲د هر عمل بنياد په نيت باندې وي لکن نيت بغير د اندامونو د کار څخه نه ښکاره کيږي لکه تکبير تحريمه چې د هر مونځ په شروع کې ويل کيږي دا په حقيقت کې د هغه نيت اعلان دی چې مونږ يې په زړه کې دمانځه د اداء کولو لپاره کوو په احرام کې ننوتل د حج د نيت لپاره ښکاره کونکی ظاهري عمل دی ستا احرام آغوستل ددې معنی لري چې تا د الله په در کې د حاضري ورکولو لپاره نوې جامې واغوستلې او د احرام په آغوستلو سره ته دا ښکاره کوې چې تا د ټولو دنيوي کارونو څخه خپل تعلق پرې کړلو بادشاه او ګدا، مالدار او غريب، عرب او عجم، تور او سپين ټول په يو ډل جامه باندې پوښل شوي دي چې د هرډول انسانانو په مينځ کې يو شان والی او ورور ګيروت ښکاره کوي زمونږ ژوند د د رسول الله نه قربان وي د بشريت لپاره د خير د غوښتنې بنسټ اېښودونکی وو چا چې د انسانانو په مينځ کې مساوات ته يې داسې حرمت او عزت ورکړی دی د

انسانیت په طبیعت کې سادګي نن ستا په بدن باندې په جامه کې ښکاره کیږي او ستا دا جامه دا اعلان هم کوي چې انسان اوس په خپل ساده او اصلي حالت باندې دی او پدې وخت کې یې هرڅه پریښي دي او ځان یې د الله تعالی طرف ته متوجه کړی دی .

څه وخت به یو څوک د احرام په حالت کې داخلیږي ؟

دا یوه خبره د یادونې وړه ده چې شریعت د مکې نه هر لوري ته حدونه ټاکلي دي چې له هغه حدونو څخه به څوک د مکې لوري ته بغیر د احرام څخه نه داخلیږي او له همدې ځای نه به داخلېدونکي د حج او یا عمرې نیت کوي او دې ځای ته میقات وایي او دا ځایونو په مبارکو احادیثو کې نومول شوي او انتخاب شوي دي او دا په ټولو هغه کسانو باندې لازم دي چې د میقات نه بهر اوسیږي او له میقات نه دمکې لوري ته تېرېدل غواړي نو په احرام کې به ور ننوزي او بغیر د احرام نه د میقات نه تېرېدل نا روا دي .

بله د یادونې وړ خبره داده چې د ځینې ځایونو حاجیان لکه د پاکستان په هوا کې د میقات د کرښې نه تېریږي او که د جهاز عمله اواز ونه کوي نو حاجیان پدې

بانــدې نــه خبرېږي چې میقــات پــه کوم ځای کې دی او څه وخت دوی پرې تېر شول نو ددې لــپاره چې بغیر د احرام نــه د مکې مکرمې ساحې تــه داخل نــشي نــو ښه خبره داده چې د جهاز د ختلو نــه مخکې دې احرام واغوندي .

پــه احرام کې بــه څوک څنګه داخلیږي؟

کــله چې تــاسې غواړئ چې د احرام پــه حالــت کې داخل شئ تــر هرڅه وړانــدې غسل وکوئ او اودس هم کفایت کوي او دا هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنت دي چې نــوکونه بــه پرې کړئ او بریتونه بــه پرې کړئ پداسې تــوګه چې ښه لــنډ شي او همدارنــګه د بــدن څخه نــور غیر ضروري ویښتــان بــه ختم کړې ، کــه چېرته ستــا عادت د سر خرېل وي نــو پــه احرام کې د داخلېدلــو نــه مخکې خپل سر هم وخریه ، د احرام لــپاره دوه سپین څادرونه پــه کار دي کــه نــوي وي نــو ډېره ښه ده او کــنه نــو چې وینځلي وي هم کفایت کوي دواړه ټوټې بــه پــاو بانــدې دوه نــیم دوه نــیم متره وي یوه بــه د څادر او بله بــه د لــنګ پــه ځای استعمال کړي ښکتنی لــنګ بــه تــر ښکنګریو نــه لــوړ وساتــې ، د ځان پــاک، کمپل، څادر استعمال هم نــا روا نــه دی البتــه ګنډلــې جامې لــکه قمیص، پرتــوګ ، کوټ او داسې نــور نــشي استعمالولی ، کــه

د څادرې په مینځ کې بخې تېره شوې وي نو هغه پروا نه لري ، سنت دادي چې کله حاجي د احرام جامې واغوندي نو دوه رکعته نفل مونځ به وکوي په اول رکعت کې به د الحمد لله نه وروسته سورت قل یا ایها الکفرن او په دوهم رکعت کې به سورت اخلاص ووایي او ددې مانځه په دوران کې به سر په پورتني څادر کې پټ کړي ځکه د احرام اوامر عملي کول لا تر اوسه پورې شروع شوي نه دي ددې مانځه د پوره کولو نه وروسته به حاجې مفرِد د حج لپاره لاندې نیت ووایي :

**اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْحَجَّ فَیَسِّرْهُ لِیْ وَ تَقَبَّلْهُ مِنِّیْ نَوَیْتُ الْحَجَّ وَ اَحْرَمْتُ بِهٖ مُخْلِصًا لِلّٰهِ تَعَالٰی۔**

ژباړه: یا الله زه د حج د اداء کولو اراده لرم راته اسانه یې کړه او لما نه یې قبول کړه د حج نیت مې کړی دی او د همدې لپاره مې احرام تړلی دی صرف ستا د الله د رضا لپاره .

که د حج قِران لپاره دې اراده کړې وي نو بیا لاندې دعا ولوله .

**اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اُرِیْدُ الْعُمْرَةَ وَالْحَجَّ فَیَسِّرْهُمَا لِیْ وَ تَقَبَّلْهُمَا مِنِّیْ نَوَیْتُ الْعُمْرَةَ وَالْحَجَّ وَاَحْرَمْتُ بِهِمَا مُخْلِصًا لِلّٰهِ تَعَالٰی ۔**

ژباړه: یا الله ما د عمرې او حج لپاره اراده کړیده ماته دواړه اسانه کړه او

دواړه لما څخه قبول کړه د عمرې او حج لپاره نيت کوم او د دواړو لپاره احرام تړم صرف د الله د رضا لپاره.

او که چېرته دې د حج تمتع لپاره اراده کړې وي نو بيا په لاندې الفاظو سره خپل نيت وکوه .

**اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اُرِيْدُ الْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهَا لِىْ وَ تَقَبَّلْهَا مِنِّىْ نَوَيْتُ الْعُمْرَةَ وَ اَحْرَمْتُ بِهَا مُخْلِصًا لِلّٰهِ تَعَالىٰ۔**

ژباړه: يا الله ما د عمرې لپاره اراده کړېده راته اسانه يې کړه او لما څخه يې قبوله کړه د عمرې لپاره نيت کوم او د عمرې لپاره مې احرام وتړلو صرف د الله د رضا لپاره.

د عمرې د کولو نه وروسته به سر و خريې او د احرام جامې به له ځان څخه لرې کړې او د ذى الحجې په آتم باندې به د مکې مکرمې نه د لاندې نيت د کولو سره بيا احرام واغوندې .

**اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اُرِيْدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِىْ وَ تَقَبَّلْهُ مِنِّىْ نُوَيْتُ الْحَجَّ وَ اَحْرَمْتُ بِهٖ مُخْلِصًا لِلّٰهِ تَعَالىٰ۔**

ژباړه: يا الله ما د حج اراده کړېده ته يې راته اسانه کړه او له ما څخه يې قبول کړه د حج نيت مې کړى دى او د همدې لپاره مې احرام تړلى دى صرف د الله د رضا لپاره .

که چېرته په عربي ژبه نيت کول تاته سخت وي نو د پښتو ژبې په شمول ته په هره ژبه باندې نيت کولی شې او چې کله نيت وکوې نو تلبيه به شروع کړې او د تلبيې الفاظ په لاندې ډول دي .

**لبيک اللهم لبيک، لبيک لا شريک لک لبيک ، ان الحمد و النعمة لک و الملک لا شريک لک و الملک .**

چې کله دې تلبيه شروع کړه نو د ا حرام احکام اوس پر تا باندې عملي کيږي نو ځکه په کار ده چې د تلبيې د شروع نه وړاندې سر لوڅ کړې او تلبيه د حج او عمرې لپاره بهترين او په هر حالت کې ډېر تکرار کېدونکی ذکر دی او دا د حاجيانو لپاره يو شعار دی او د حضرت ابراهيم عليه السلام د دعوت جواب دی چې هغه ټول د الله تعالی بندګان د حج د اداء کولو لپاره را وغوښتل دا د حج يا عمرې اراده کونکي دهغه دعوت هرکلی د تلبيې په الفاظو سره کوي .

کله دې چې تلبيه وويله د ډېرې عاجزي سره به لاس پورته کړې او د لاندې په ډول دعا ګانې به وکوې .

ای الله زه لتانه ستا رضا او جنت غواړم او ستا له غصې او ستا له جهنم نه پناه غواړم . او داسې نورې دعا ګانې .

ددېنه وروسته تلبيه ستا بهترين ذکر دی

چې باید ستا په خوله باندې وي کله چې ته له چا سره مخامخ کیږې یا چېرته په لوړه خېږې یا په ښکته باندې ښکته کېږې تلبیه به ستا په خوله او په زړه کې به دې یوازې د الله یاد او جذبه وي ، زنانه به تلبیه په ورو اواز کې وایي تردې حده پورې چې اواز یې پرې پورته نشي ، که ستا اراده د حج تمتع وي او یا دې اراده یوازې د عمرې وي نو بیا د کعبې نه د اوه ځلې څرخېدلو څخه وروسته تلبیه بنده کړه بیا نوره مه وایه او که چېرته دې اراده د حج افراد او یا حج قِران وي نو بیا به د جُمرې عقبې تر ویشتلو پورې ستا په خوله باندې تلبیه روانه وي او چې کله د جمرې عقبې د رمی (جمرو د وېشتلو) نه فارغ شې نو بیا به تلبیه بنده کړې .

## د احرام قیدونه

کله چې د احرام دعاګانې د نیتونو په وخت ولوستې او بیا د تلبیه وویله اوس به د احرام ټول قیدونه پر تا باندې وي اوس نور ته ګنډلې جامې نشې آغوستلی، خپل سر او مخ نشې پټولی، داسې بوټ یا موزه نشې په پښو کولی چې ستا د ښنګرې نه پورته پښه پټه کړي ، اوس ته سر نشې خرېلی بلکه یو وېښته له خپل بدن څخه نشې وېستلی ، نوکان نشې پرې کولی، عطر

نشې لګولی ، جماع نشې کولی حتی چې داسې خبرې کول هم ښې نه دي چې جماع نيت دې زړه ته ور واچوي ، ته اوس کوم حيوان نشي ويشتلی يا حلالولی بلکه ته اوس کومې حشرې ته هم نقصان نشې رسولی اګر که هغه ستا په بدن يا ستا په څادر باندې هم وي ، د بحثونو او بې ځايه خبرو او جګړو څخه به ځان ساتې او کله چې مونږ په احرام کې داخلېږو دا پورتنۍ ټولې خبرې مونږ ته نا روا کيږي .

## ښځينه او احرام

په احرام کې د ښځو حکم تقريباً د سړيو سره په يوه ډول دی صرف دومره فرق يې دی چې هغوی ګنډلې جامې آغوستلی شي او هغوی خپل سر پټولی شي لکن مخ نشي پټولی .

## د حاجيانو معلم

کله چې د حاجيانو په سفر کې دهغوی لارښود (معلم يا راه بلد) ته ضرورت کيږي نو هغوی ځان ته يو معلم نيسي چې هغه ددوی سره وي تر هغه وخته پورې چې دوی بېرته له حجاز نه را وګرځي هر حاجي ته په جده کې نقيب الوکلاء خپل معلم ور پېژني بيا د معلم دا وظيفه وي چې د حاجي د هستوګنې او دهغه د

ضروریاتو په اړه باندې فکر وکوي او حاجې ته د حج ټولې طریقې او ضروري خبرې هم ور وښیي ځکه دا حاجیان هلته په مقامي ځایونو کې او لارو او کودرو کې پوره نا بلد وي په عربي ژبه هم نه پوهیږي نو ددې وجې نه یو معلم او لار ښونکي ته ضرورت وي او کله چې تاسې ته یو معلم وټاکل شي هغه بیا تاسې نشئ بدلولئ او که تاسې یې بدلول غواړئ نو د هغه لپاره به خپل بېل فیس جمع کوئ او که بیا د معلم رویه ډېره خرابه وي د معلمینو په سر باندې یو سر معلم مقرر وي دهغه په مرسته او د خپل ملک د سفارت په مرسته تاسې کولی شئ هغه بدل کړئ.

## جده

حاجي که د وچې له لارې نه ځي او یا د سمندر له لارې نه تر هرڅه وړاندې جدې ته رسیږي په بل عبارت جده د حرم مقدس دروازه ده او جدې ته له رسېدلو سره به ستا ژبه په تلبیه او نورو مقدسو اذکارو باندې چلیږي جدې ته له رسېدلو نه وروسته به تاسې کسټم ته یوړل شئ چېرته چې به ستاسې د اسنادو او ستاسې د مالونو کتنه وشي د سعودي کسټم ستاسې سره نور کار نه لري خو که تاسې څه غیر قانوني شی درسره وړي وو د ملک

د قانون سره به مخامخ کیږئ په همدې ځای کې به ستاسې نقیب الوکلاء تاسې ته ستاسې د معلم نوم در وښیي او هر څوک به دهغه د معلم سره معرفي کړي د کستم نه به بیا تاسې د حاجیانو لپاره جوړ شوي کمپ (مدینة الحجاج ) ته بوتلل شئ پدې ځای کې به د معلمینو مشر او یا پخپله ستاسې معلم ستاسې سره خبرې او ملاقات وکوي اوس به ددېنه وروسته تاسې خپل سفر دهغه د هدایاتو سره سم مخ په وړاندې بیایئ .

## حرم

د مکې مکرمې نه لرې چارپېره نښې کېښودل شوي دي چې دحرم علاقه تعین کوي او دا نښې د لمړي ځل لپاره حضرت ابراهیم علیه السلام تعین کړې وې او د رسو ل الله صلی الله علیه وسلم په لاس باندې دا نښې بیا تازه کړل شوې د جدې نه په لاره باندې مکې مکرمې ته له مکې مکرمې نه لس میله لرې د شُمیسیه په علاقه کې یوه منا ره د حرم د علاقې ښکارونه کوي د مکې مکرمې نه مدینې منورې ته په درې میله کې د تنعیم په علاقه کې او د یمن خوا ته د عزت لبن په علاقه کې په اووه میلونو کې ، له جرانه څخه په نه میلونو کې او د طائف لوري ته په اوه میلونو کې د حرم د ښکاره کولو لپاره

نښې لګېدلې دي ددې حدونو د ننه ښکار کول، حیوان وژل، شنه بوټي شکول منع کړل شوي دي .

د جدې نه چې کله د حرم په لوري حرکت وکوئ نو چې د مکې مکرمې خوا ته لس میله ور نږدې شئ دلته د شُمیسیه په علاقه کې د حرم د حدونو د شروع کېدلو لپاره تاسې ته مناره ښکاره کیږي دلته تاسې د حرم علاقې ته ننوزئ او د الله تعالی په دربار کې د حاضري ورکولو لپاره به لاندې دعا ولولئ.

**اَللّٰهُمَّ اِنَّ هٰذَا حَرَمُکَ وَ حَرَمُ رَسُوْلِکَ فَحَرِّمْ لَحْمِیْ وَ دَمِیْ وَ عَظْمِیْ وَ بَشَرِیْ عَلَی النَّار اَللّٰهُمَّ آمِنِّیْ مِنْ عَذَابِکَ یَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَکَ۔**

ژباړه : یا الله دا ستا او ستا د نبي حرم دی ته زما غوښه، زما هډوکی، زما وینه او زما ځان په اور باندې حرام کړې په هغه ورځ چې ته خپل بندګان بیا را پورته کوې ما له خپل عذاب نه په امن کې وساته .

## مکې مکرمې ته ننوتل

د رسول اکرم صلی الله سنت دي چې کله مکې ته ننوزئ دهغې نه مخکې به غسل وکوئ په اوس وخت کې که تاسې په جده کې هم غسل وکوئ نو دا سنت په ځای کیږي ځکه چې د

موټرو د پوره سرعت له امله د جدې نه مکې ته په تللو کې ډېر وخت نه لګيږي چې کله دې د لمړي ځل لپاره په مکه مکرمه باندې سترګې ولګيږي لاندې دعا به ولولې .

اَللّٰهُمَّ اَجْعَلْ لِیْ بِهَا قَرَاراً ط وَارْزُقْنِیْ بِهَا حَلاَلاً ط اَللّٰهُمَّ الْبَلَدُ بَلَدُکَ وَالْبَيْتُ بَيْتُکَ جِئْتُ اَطْلُبُ رَحْمَتَکَ ط وَاَرُوْمُ طَاَعَتَکَ مُتَّبِعًا لِاَمْرِکَ رَاضِيًا بِقَدَرِکَ ط وَاَسْئَلُکَ مَسْئَلَةَ الْمُضْطَرِّ اِلَيْکَ ط اَلْمُشْفِقِ مِنْ عَذَابِکَ اَنْ تَسْتَقْبِلْنِیْ بِعَفْوِکَ وَاَنْ تُجَاوِزَ عَنِّیْ بِرَحْمَتِکَ وَ اَنْ تُدْخِلَنِیْ جَنَّتَکَ

ژباړه: يا الله پدې سره ماته سکون راکړې، او پدې سره ماته حلاله روزي راکړې ای الله ښار ستا ښار دی، کور ستا کور دی زه راغلی يم ستا رحمت غواړم مطلب مې ستا اطاعت دی ستا د حکم منونکی او ستا په فيصله باندې راضي يم او لتا نه داسې سوال کوم چې زه تاته پوره محتاج يم ستا د عذاب نه په ډار کې يم چې ته ماته د خپلې بښنې سره مخامخ شه او زما له ګناهونو ماته را تېر شه او ستا جنت ته مې داخل کړه .

غوره خبره داده چې مکې مکرمې ته د جنت المعلی له لوري نه ور ننوزې دا د مکې مکرمې تر ټولو زړه هديرده ده او پدې کې د رسو الله صلی الله عليه وسلم د

ځینې صحابه وو قبرونه تر اوسه پورې په خپل حال دي چې کله د جنت المعلی له لوري مکې مکرمې ته ورځې نو دلته یو ځای دی د میدا په نوم باندې چې دې ځای ته ورسېږي نو لاندې دعا به ولولې :

**رَبَّنَا اٰتِنَا فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّ فِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ مِنْ خَیْرِمَا سَئَلَکَ نَبِیُّکَ مُحَمَّدٌ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَ آلِهِ وَسَلَّمَ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ شَرِّ مَا اسْتَعَازَکَ مِنْهُ نَبِیُّکَ مُحَمَّدٌ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمْ۔**

ژباړه: ای زما ربه راکړې مونږ ته په دې دنیا کې نیک او په آخرت کې هم راکړې نیک او مونږ د اور له عذاب نه وساته ای ربه زه لتا نه دهغه نیکي سوال کوم چې ستا نبي محمد صلی الله علیه وسلم یې سوال کړی وو او زه دهغه شر نه پناه غواړم چې ستا نبي محمد صلی الله علیه وسلم ترې پناه غوښتې وه .

مکې مکرمې ته د جنت المعلی له لوري ننوتل او د میدا په علاقه کې پورتنۍ دعا ویل ښه خبره ده او که داسې ممکنه نه وه او یا مشکله وه نو بیا له بلې خوا ننه په ننوتلو کې هم څه حرج نشته .

# په مسجد حرام کې موجوديت او طواف



کله چې مسجد حرام ته د ننوتلو وخت شي که ممکنه وه نو د باب السلام له دروازې نه به ورته راشې او د ننوتلو په وخت کې به لاندې دعا ولولې:

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ وَافْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ

ژباړه: يا الله زما ګناهونه راته معاف کړه او زما لپاره د رحمت دروازې پرانيزه .

او چې د لمړي ځل لپاره بيت الله ووينې نو لاندې ذکر به وکوې.

اَللّٰهُ اَكْبَرْ لَآ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَر

او لاسونه به پورته کړې لاندې دعا به ولولې ( په دی ځای کې لاسونه پورته کول سنت دي)

اَللّٰهُمَّ زِدْبَيْتَکَ هٰذَا تَشْرِيْفًا وَّ تَعْظِيْمًا وَّ تَكْرِيْمًا وَّ مَهَابَةً وَّ زِدْ مَنْ حَجَّہ، اَوِعْتَمَرَ تَشْرِيْفًا وَّ تَكْرِيْمًا وَّ تَعْظِيْمًا وَ بِرّاً اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلاَمُ وَمِنْکَ السَّلاَمُ فَحَيِّنَا رَبَّنَا بِالسَّلاَمِ اَعُوْذُبِرَبِّ الْبَيْتِ مِنَ الدَّيْنِ وَالْفَقْرِ وَ مِنْ ضِيْقِ الصَّدْرِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ۔

ژباړه: ای الله ددې خپل کور شرافت، عظمت او عزت او دبدبه لا نور هم زیات کړه او هغه چا چې ددې ځای حج او یا عمره وکوله دهغه عزت هم زیات کړه او هغه نیک کړه ای الله ته سلامتي ورکونکی یې، سلامتي ورکول ستا نه دي مونږ ته د سلامتیا تحفه راکړې زه ددې کور په مالک باندې د قرض نه، د غریبۍ نه، او دسینې د تنګېدلو او د قبر له عذاب نه پناه غواړم

## طواف (لمړی عمل)

کله چې هم ته مکې مکرمې ته ځې که د حج لپاره وي او که د عمرې لپاره وي او که په حج کې دې د کوم یو حج اراده هم کړې وي نو د هستوګنځي د مشکلاتو نه د ځان د بېغمه کولو نه وروسته به دا ستا اول کار وي چې طواف وکوې او طوافونه ټول په یو ډول دي

لكن په مختلفو حالتونو كې يې حكم بدليږي د مثال په ډول هغه كسان چې حج تمتع كوي او يا يوازې عمره كوي نو دهغوی لپاره دا طواف د عمرې طواف دی او هغه كسان چې د حج افراد او قِران اراده يې كړې وي دهغوی لپاره دا طواف قدوم دی كوم چې سنت دی واجب نه دی .

## د طواف طريقه




د طواف معنی ده له كوم شي نه ګرد را څرخېدل او په اصطلاح كې طواف له بيت الله نه ګرد را تاوېدل دي او دا طواف چې حاجي يې اوس كوي اوه ځله په بيت الله باندې را څرخېدل دي او په عربي كې دې يو ځل را تاوېدلو ته شوط وايي د كعبې معظمې نه اوه شوطونه پوره كول دي ، زمونږ په دين كې د كعبې معظمې نه بغير

نور د هرشي نه طواف كول نا روا ګڼل شوي دي ددې طواف لپاره نيت ضروري دى او كه د نيت نه بغير طواف كول كيږي نو ثواب لري او كه هرڅو شوطونه دې د نيت نه بغير كړي وي ددي طواف ځاى د نه نيسي او ددې طواف لپاره به نيت داسې كوې :

اى الله زما د طواف اراده ده چې ستا رضا پرې حاصله كړم ربه ماته يې اسان كړه او لما څخه يې قبول كړه . دا نيت كول په زړه كې ضروري دي خو كه په خوله هم ورسره وويل شي نو ښه خبره ده او د طواف شروع به د هغه ځاى نه كوي چېرته چې حجر اسود دى او په ښي طرف به را تاويږي چې بېرته هغه كرښې ته راورسيږي چېرته چې د حجر اسود نه سيده توره كرښه تېره شوېده نو يو شوط به پوره شي او د طواف په شروع كې به داسې تكبير ووايې :

بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ وَالصَّلٰوٰةُ وَالسَّلاَمُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ اِيْمَانًا بِكَ وَ وَفَاءً بِعَهْدِكَ وَ اِتِّبَاعًا لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ۔

او كه چاته دا ټول تكبير نه ياديږي نو صرف دا دې ووايې :

بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ

ښه خبره داده چې د شوط په شروع کې حجر اسود مچي کړل شي خو که د هغې مچي کول د رش او بیر بار له امله سخت وو نو لاس دې پرې ولګوي او خپل لاس دې بیا مچي (ښکل) کړي او که دا هم مشکله وه نو لرګی یا بل شی چې پرې ولګوي او هغه بیا ښکل کړي دا هم صحیح ده او که دا هم نه کیږي نو صرف لاس دې له لرې ورته پورته کړي او هغه دې بیا ښکل کړي او خپل طواف دې مخکې بوزي او د حجر اسود په مس کولو او یا ښکل کولو په وخت باید په یاد ولرل شي چې نورو خلکو ته تکلیف ورنه کړي نو ځکه صرف د لاس پورته کول هم کافي ګڼل شوي دي د طواف په دوران کې چې کله رکن یمني ته ورسیږي د هغې سره ښی لاس لګول هم سنت دي او که دهغه سره لاس لګول سخت وو نو بیا خپل طواف ته ادامه ورکړئ .

د مکې مکرمې څلور کونجونه دي او هر کونج ته یې رکن وایي په یوه کونج کې یې حجر اسود ځای په ځای کړل شوی دی ددېنه په مغرب لوري کې کونج رکن یمني دی پاتې دوه کونجونه کې یو رکن شامي او بل یې رکن عراقي دی خو په طواف کې ددې دواړو کونجونو په اړه د پېژندلو څه ضروري خبره نشته .

کله چې د طواف په دوران کې ته بیا

حجر اسود ته را ورسېږې نو بيا به
ووايي : بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ

تر اوو ځلو پورې به د هر شوط د شروع
کولو لپاره همدا طريقه وي چې د حجر ا
سود ښکل کول او داسې نور .

يادښت :

کله چې دجمعې په ورځ امام خطبه شروع
کړي او يا د مانځه لپاره صفونه جوړ
کړل شي نو پدې وخت کې بيا طواف کول
مکروع شي .

## د طواف دعا ګانې

لاندې درته څو داسې دعا ګانې نقل کوم
چې رسو ل الله صلى الله عليه وسلم او دهغه
صحابه وو به د هر شوط په وخت کې ويلې
که دا يادې کړل شي او په سمه توګه
وويلې شي نو ډېره ښه خبره ده او که
هغه څوک نشي يادولی نو لږ تر لږه دا
دعا خو به يې ياده وي دا دې وايي :

رَبَّنَا اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِى الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا
عَذَابَ النَّارِ۔

او ددې دعا په ځای هم تاسې په طواف کې
هره دعا ويلی شئ .

د لمړي شوط لپاره دعا .

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ لَآ اِلٰـهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَ اللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لاَ حَوْلَ

وَ لاَ قُوَّةَ اِلاَّ بِاللّٰهِ الْعَلِیُّ الْعَظِیْمِ ؕ وَالصَّلاَةُ وَالسَّلاَمُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اِیْمَانًا بِکَ وَ تَصْدِیْقًا بِکَلِمَاتِکَ وَ وَفَآءً بِعَهْدِکَ وَاتِّبَاعًا لِسُنَّةِ نَبِیِّکَ وَ حَبِیْبِکَ مُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اِنِیٌّ اَسْئَلُکَ الْعَفْوَ وَالْعَافِیَةَ وَالْمُعَافَاةَ الدَّائِمَةَ فِی الدِّیْنِ وَالدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ وَالْفَوْزَ بِالْجَنَّةِ وَالنَّجَاةَ مِنَ النَّارِ۔

ژباړه: پاکي ده الله لره ثنا ده الله لره نشته لائق د عبادت مګر الله دی الله لوی دی د ټول قوت او قدرت مالک لوی الله دی درود او سلام دې وي په رسو ل الله صلی الله علیه وسلم باندې ای الله په تا باندې د ایمان سره، ستا د کلام په تصدیق سره ستا په عهد باندې د وفا سره ستا د نبي او ستا د حبیب محمد صلی الله علیه وسلم د سنتونو د متابعت سره ستا نه د ښنې سوال کومه الله ماته ښنه وکوې همېشه زما په دین زما په دنیا کې او ستا نه د جنت په حاصلولو کې کامیابي او له اور نه نجات غواړم .

رکن یمني ته له رسېدلو سره به دا دعا ختمه کړې او بیا به دا دعا ولولې.

رَبَّنَا اٰتِنَا فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّ فِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ۔ وَ اَدْخِلْنَا الْجَنَّةَ مَعَ الاَبْرَاِ یَا عَزِیْزُ یَا غَفَّارُ یَا رَبَّ الْعَالَمِیْنَ ۔

ژباړه: زمونږ ربه راکړه مونږ ته په دنیا کې نیکي او په آخرت کې نیکي او

مونږ د اور د عذاب نه وژغوره او جنت ته مو له نیکانو سره داخل کړه ای غالب او بښونکیه ربه د ټول عالم ربه .

کله چې بېرته حجر اسود ته ورسیږي اوس یو شوط (یو دور) پوره شو د دوهم شروع به هم همداسې وکوې لکه د اول شروع دې چې کړې وه د حجر اسود په ښکل کولو یا مس کولو سره او **بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ** به ووایې او مخکې به لاړ شې او د دوهم شوط لپاره به لاندې دعا لوستل شروع کړې .

**اَللّٰهُمَّ اِنَّ هٰذَا الْبَيْتَ بَيْتُكَ وَالْحَرَمَ حَرَمُكَ وَالْاَمْنَ اَمْنُكَ وَالْعَبْدُ عَبْدُكَ وَ اَنَا عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَ هٰذَا مَقَامُ الْعَآئِذِ بِكَ مِنَ النَّارِ فَحَرِّم لُحُوْمَنَا وَ بَشَرَنَا عَلَى النَّارِ اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَيْنَا الْاِيْمَانَ وَ زَيِّنْهُ فِيْ قُلُوْبِنَا وَكَرِّهْ اِلَيْنَا الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ وَاجْعَلْنَا مِنَ الرَّاشِدِيْنَ۔ اَللّٰهُمَّ قِنِیْ عَذَابَکَ یَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَکَ اللّٰهُمَّ ارْزُقْنِیْ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابِ ۔**

ژباړه: ای الله دا کور ستا کور دی، حرم ستا حرم دی، امن ستا امن دی، بنده ستا بنده دی ، زه ستا بنده یم او ستا د بنده زوی یم پدې کوم ځای کې چې زه ولاړ یم دا د اور نه د پناه غوښتونکی ځای دی زمونږ غوښې زمونږ ځانونه په اور باندې حرام کړه مونږ ته ایمان را ګران کړه او زمونږ په زړونو کې یې ښائسته کړه زمونږ په زړونو کې د کفر،

فسق او ګناهونو څخه کرکه پيدا کړه او مونږ د هغه کسانو له ډلې نه کړه چې هغوی لاره پيدا کړې وي ، ای الله په کومه ورځ چې ته خپل بندګان را پاڅوې ما د خپل عذاب نه وساته او ماته د حساب نه بيغير جنت راکړه .

دا دعا به هم تر رکن يمني پورې ختمه کړې او د رکن يمني سره چې کومه دعا لوستله کيږي هغه په اول شوط کې تيره شوه .

چې کله حجر اسود ته ورسيږې نو بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ به ووايې او مخکې به لاړ شې او د دريم شوط لپاره به لاندې دعا لوستل شروع کړې .

**اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِکَ مِنَ الشَّکِّ وَالشِّرْکِ وَالشِّقَاقِ وَالنِّفَاقِ وَ سُوْءِ الْاَخْلَاقِ وَ سُوْءِ الْمَنْظَرِ وَالْمُنْقَلَبِ فِی الْمَالِ وَالْاَهْلِ وَالْوَلَدِ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ رِضَاکَ وَالْجَنَّةَ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ سَخَطِکَ وَالنَّارِ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِکَ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ۔**

ژباړه: يا الله زه پر تا باندې پناه غواړم له شک ، له شرک، له بد بختي، له نفاق ، له بدو اخلاقو، له بند انجام نه په مال او اهل او اولاد کې يا الله زه ستا نه ستا رضا غواړم او پر تا باندې پناه غواړم ستا له قهر نه او له اور

نه يا الله زه د قبر له فتنې څخه او زه پر تا باندې پناه غواړم د قبر له فتنې څخه او پرتا باندې زه پناه غواړم د ژوند او مرګ له فتنې څخه .

لکه د مخکنيو شوطونو (دورو) په څير چې کله رکن يمني ته رسيږي نو دهغه ځای خپله دعا به ولولي چې په اول شوط کې تيره شوه چې کله حجر اسود ته ورسيږي نو **بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ** به ووايي او مخکې به لاړ شي او د څلرم شوط لپاره به لاندې دعا لوستل شروع کړي .

**اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ حَجًّا مَّبْرُوْرًا وَّ سَعْيًا مَّشْكُوْرًا وَّ ذَنْباً مَّغْفُوْرًا وَّ عَمَلاً صَالِحًا مَّقْبُوْلاً وَّ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ يَا عَالِمَ مَا فِى الصُّدُوْرِ اَخْرِجْنِىْ يَا اَللّٰهُ مِنَ الظُّلُمَاتِ اِلَى النُّوْرِ اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَسْئَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَ عَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالسَّلاَمَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ وَّالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَّ الْفَوْزَ بِالْجَنَّةِ وَالنَّجَاةَ مِنَ النَّارِ۔ رَبِّ قَنِّعْنِىْ بِمَا رَزَقْتَنِىْ وَ بَارِكْ لِىْ فِيْمَا اَعْطَيْتَنِىْ وَاخْلُفْ عَلٰى كُلِّ غَائِبَةٍ لِّىْ مِنْكَ بِخَيْرٍ۔**

ژباړه : يا الله دا زما حج قبول کړې ، زما د کوښښونو اجر راکړې، زما ګناه راته معاف کړې، زما نيک عمل راته قبول کړې، زما تجارت راته بې نقصانه کړې، ای هغه ذاته چې ته پوهيږې په هغه څه چې په سينو کې دي ما د تيارو نه د رڼا خواته وباسې يا الله زه لتانه

ستا د رحمت اسباب غواړم ، زه ستا بښنه غواړم زه لتانه غواړم چې ما له ګناهونو څخه وساته او نیکي راکړه د جنت په حاصلولو کې مې کامیاب کړه او له اور نه مې وساته، ای ربه ماته قناعت راکړه پر هغه څه چې تا ماته راکړي دي او هغه څه چې تا ماته راکړي دي برکت راته پکې واچوه یا الله ماته زما د هر نقصان په بدل کې اجر راکړه .

لکه د مخکنیو شوطونو (دورو) په څیر چې کله رکن یمني ته ورسېږې نو دهغه ځای خپله دعا به ولولې چې په اول شوط کې تېره شوه چې کله حجر اسود ته ورسېږې نو بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ به ووایې او مخکې به لاړ شې او د پنځم شوط (دور) لپاره به لاندې دعا لوستل شروع کړې .

اَللّٰهُمَّ اَظِلَّنِىْ تَحْتَ ظِلِّ عَرْشِکَ يَوْمَ لاَ ظِلَّ اِلاَّ ظِلَّ عَرْشِکَ، وَ لاَ بَاقِىَ اِلاَّ وَجْهَکَ وَاَسْقِنِىْ مِنْ حَوْضِ نَبِيِّکَ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرْبَةً هَنِيْئَةً مَرِيْئَةً لاَّ نَظْمَأُ بَعْدَهَا اَبَدًا۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَسْئَلُکَ مِنْ خَيْرِ مَا سَئَلَکَ مِنْهُ نَبِيُّکَ سَيِّدُنَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ شَرِّ مَااسْتَعَاذَبِکَ مِنْهُ نَبِيُّکَ سَيِّدُنَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَسْئَلُکَ الْجَنَّةَ وَ نَعِيْمَهَا وَ مَا يُقَرِّبُنِىْ اِلَيْهَا مِنْ قَوْلٍ اَوْ فِعْلٍ اَوْ عَمَلٍ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنَ النَّارِوَ مَا يُقَرِّبُنِىْ اِلَيْهَا مِنْ قَوْلٍ اَوْ فِعْلٍ اَوْ عَمَلٍ

-

ژباړه: ای الله ما ته د خپل عرش تر سیوري لاندې په هغه ورځ ځای راکړه چې په کومه ورځ ستا د عرش د سیوري نه سوا بل سیوری نه وي او پدې ورځ صرف ستا ذات اقدس پاتې وي ای الله ماته ستا د نبي او زمونږ د سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له حوض نه اوبه راکړه داسې مزه دار ځښاک ترې راکړه چې دهغو نه وروسته بیا د تل لپاره مونږ تږي نه شو . ای الله زه لتا نه دهغه نیک شي سوال کوم چې د کوم سوال لتا څخه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم کړی وو او زه پر تا باندې پناه غواړم له هغه شر نه چې ستا نبي او زمونږ سردار محمد صلی الله علیه وسلم ترېنه پناه غوښتې وه . ای الله زه ستانه جنت او دهغه نعمتونه غواړم او هغه څه راکړه چې ما هغه ته نېږدې کوي که هغه خبر وي او یا عمل وي او زه په تا باندې پناه غواړم له اور نه او له هغه څه نه چې ما هغه ته نېږدې کوي که هغه خبره وي او که کوم کار وي .

لکه د مخکنیو شوطونو (دورو) په څیر چې کله رکن یمني ته رسېږې نو دهغه ځای خپله دعا به ولولې چې په اول شوط کې تېره شوه چې کله حجر اسود ته

ورسېږې نو بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ به وواېي لکه د مخکې په ډول که د ښکل کولی شو نو ښکل به يې کړې او کنه صرف لاس به ورته پورته کړې هغه به ښکل کړې او مخکې به لاړ شې او د شپږم شوط (دور) لپاره به لاندې دعا لوستل شروع کړې .

**اَللّٰهُمَّ اِنَّ لَکَ عَلَیَّ حُقُوْقًا کَثِیْرَۃً فِیْمَا بَیْنِیْ وَ بَیْنَکَ وَ حُقُوْقًا کَثِیْرَۃً فِیْمَا بَیْنِیْ وَ بَیْنَ خَلْقِکَ اَللّٰهُمَّ مَاکَانَ لَکَ مِنْهَا فَاغْفِرْهُ لِیْ وَ مَا کَانَ لِخَلْقِکَ فَتَحَمَّلْهُ عَنِّیْ وَ اَغْنِنِیْ بِحَلاَلِکَ عَنْ حَرَامِکَ وَ بِطَاعَتِکَ عَنْ مَّعْصِیَتِکَ وَ بِفَضْلِکَ عَنْ مَّنْ سِوَاکَ یَا وَاسِعَ الْمَغْفِرَۃِ اَللّٰهُمَّ اِنَّ بَیْتَکَ عَظِیْمٌ وَّ وَجْهَکَ کَرِیْمٌ وَ اَنْتَ یَا اللّٰهُ حَلِیْمٌ کَرِیْمٌ عَظِیْمٌ تُحِبُّ الْعَفُوَ فَاعْفَ عَنِّیْ ۔**

ژباړه: ای الله بېشکه ستا په ما باندې ډېر حقونه دي زما او ستا په مېنځ کې او زما او ستا د نور مخلوق په مېنځ کې ای الله هغه چې زما او ستا په مېنځ کې دي هغه راته معاف کړه او هغه چې زما او ستا دمخلوق په مېنځ کې دي له ما يې واړوه ما په حلال مال باندې د حرام مال نه بې پرواه کړې ، ما په اطاعت باندې له ګناه نه بې پرواه کړې او په خپل فضل مې ستا نه بيغير بل چا ته د ضرورت نه بې پرواه کړه ای د فراخې بښنې مالکه ستا کور ډېر لوی دی ، ستا ذات ډېر د عزت واله دی او ته ای حليمه ، عزتمنه او لوی ذاته بښنه

خوښوې ماته ښه وکوه .

لکه د مخکنيو شوطونو (دورو) په څير چې کله رکن يمني ته رسيږي نو د هغه ځای خپله دعا به ولولې چې په اول شوط کې تېره شوه چې کله حجر اسود ته ورسيږي نو بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ به ووايې لکه د مخکې په ډول که د ښکل کولی شو نو ښکل به يې کړي او کنه صرف لاس به ورته پورته کړي هغه به ښکل کړي او مخکې به لاړ شي او د اوم شوط (دور) لپاره به لاندې دعا لوستل شروع کړي .

اَللّٰهُمَّ اِنِىّْ اَسْئَلُكَ اِيْمَانًا كَامِلاً وَّ يَقِيْنًا صَادِقًا وَّ رِزْقًا وَّاسِعًا وَّ قَلْبًا خَاشِعًا وَّ لِسَانًا ذَاكِرًا وَّ رِزْقًا حَلاَلاً طَيِّبًا وَّ تَوْبَةً نَصُوْحَةً وَّ تَوْبَةً قَبْلَ الْمَوْتِ وَرَاحَةً عِنْدَ الْمَوْتِ وَ مَغْفِرَةً وَّ رَاحَةً بَعْدَ الْمَوْتِ وَالْعَفْوَ عِنْدَ الْحِسَابِ وَالْفَوْزَ بِالْجَنَّةِ وَالنَّجَاةَ مِنَ النَّارِ بِرَحْمَتِكَ يَا عَزِيْزُ يَا غَفَّارُ رَبِّ زِدْنِىْ عِلْمًا وَّاَلْحِقْنِىْ بِالصَّالِحِيْنَ ـ

ژباړه: ای الله زه لتا څخه پوره ايمان ، رښتونی يقين، فراخه روزي، وېرېدونکی زړه، ذکر کونکې ژبه، حلاق رزق، او کلکه توبه ، د مرګ نه وړاندې توبه، د مرګ په وخت کې راحت او بښنه، او د مرګ نه وروسته راحت، د حساب په وخت کې بښنه، د جنت په حاصلولو باندې کاميابي او له اور نه نجات غواړم ستا په رحمت ای د طاقت خاونده ای بښونکيه

ربه زما په علم کې زيادت راولې او ما د نيکانو سره يو ځای کړې .

لکه د مخکنيو شوطونو (دورو) په څير چې کله رکن يمني ته رسيږې نو د هغه ځای خپله دعا به ولولې چې په اول شوط کې تيره شوه

چې کله حجر اسود ته ورسيږې نوکوښښ وکوه چې ښکل يې کړې او که ممکنه نه وه نو لاس ورسره ولګوه او که دا هم ممکنه نه وه نو لاس ورته پورته کړه او هغه بيا ښکل کړه او **بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ** به ووايې او ملتزم ته به راشې ملتزم هغه فاصله ده چې د حجر اسود او د بيت الله د دروازې په مينځ کې ده دا ځای د دعا د قبليدلو د ځای په توګه خصوصيت لري نو ته به هم ملتزم ته راشې او دلته به خاص همدې ديوال ته مخ کړې او لاسونه به تر خپل سر نه پورته کړې او دعا به د الله تعالی د نعمتونو په يادولو باندې شروع کړې او بيا چې څه دعا کوې وبه يې کوې پدې ځای کې شوې دعا نه رد کيږي الله تعالی يې قبلوي .




## په ملتزم كې دا دعا ويل سنت دي

اَللّٰهُمَّ يَا رَبَّ الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ اَعْتِقْ رِقَابَنَا وَ رِقَابَ اٰبَائِنَا وَ اُمَّهَاتِنَا وَ اِخْوَانِنَا وَ اَوْلاَدِنَا مِنَ النَّارِ يَا ذَالْجُوْدِ وَالْكَرَمِ وَالْفَضْلِ وَالْمَنِّ وَالْعَطَاءِ وَالْاِحْسَانِ اَللّٰهُمَّ اَحْسِنْ عَاقِبَتَنَا فِى الْاُمُوْرِ كُلِّهَا وَاَجِرْنَا مِنْ خِزْىِ الدُّنْيَا وَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَاقِفٌ تَحْتَ بَابِكَ مُلْتَزِمٌ بِاَعْتَابِكَ مُتَذَلِّلٌ بَيْنَ يَدَيْكَ اَرْجُوْ رَحْمَتَكَ وَاَخْشَى عَذَابَكَ مِنَ النَّارِ يَا قَدِيْمَ الْاِحْسَانِ ط اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَسْئَلُكَ اَنْ تَرْفَعَ ذِكْرِىْ وَ تَضَعَ

وِزْرِیْ وَ تُصْلِحَ اَمْرِیْ وَ تُطَهِّرَ قَلْبِیْ وَ تُنَوِّرَلِیْ فِیْ قَبْرِیْ وَ تَغْفِرَلِیْ ذَنْبِیْ وَ اَسْئَلُکَ الدَّرَجَاتِ الْعُلٰی مِنَ الْجَنَّةِ اٰمِیْنَ

ژباړه: ای الله ددې ازاد او د لوی شان واله بیتې مالکه زمونږ غاړې، زمونږ د پلرونو غاړې، زمونږ د میندو غاړې، زمونږ د ورونو خویندو غاړې، زمونږ د اولادونو غاړې له اور نه خلاصې کړه ای د عزت او سخاوت مالکه ، د بهترې، نیکې، ورکړې او احسان مالکه ای الله په ټولو کارونو کې زمونږ آخر په خیر کړې او ای الله مونږ د دنیا او د آخرت د شرمنده کېدلو نه وژغوره ای الله زه ستابنده یم ستا د بنده زوی یم ستا تر دروازه لاندې ولاړ یم او ستا په درکې خپله عاجزې ښکاره کوم ستا مخې ته ولاړ یم ستا د رحمت امید وار یم او ستا د اور د عذاب نه ډارېږم ای د پخوانې احسان مالکه ای الله زه لتا څخه غواړم چې زما یاد پورته کړې زما نه ګناهونه لرې کړې زما کارونه را جوړ کړې زړه مې پاک کړې قبر مې روښانه کړې ګناهونه راته معاف کړې او ستا نه زه په جنت کې لوړې مرتبې غواړم. امین .

ددې دعا نه چې کله فارغ شې نو د مقام ابراهیم سره به دوه رکعته د طواف مونځ اداء کړې او که هلته ممکنه نه وه د مسجد حرم په هر ځای کې چې درته

اسانه وي اداء کولی شې او بیا به دا دعا ولولې .

اَللّٰهُمَّ اِنَّکَ تَعْلَمُ سِرِّیْ وَ عَلاَنِیَّتِیْ فَاقْبَلْ مَعْذِرَتِیْ وَ تَعْلَمَ حَاجَتِیْ فَاَعْطِنِیْ سُؤْلِیْ وَ تَعْلَمُ مَا فِیْ نَفْسِیْ فَاغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ ط اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ اِیْمَانًا یُّبَاشِرُ قَلْبِیْ وَ یَقِیْنًا صَادِقًا حَتّٰی اَعْلَمَ اَنَّہ، لاَ یُصِیْبُنِیْ اِلاَّ مَا کَتَبْتَ لِیْ وَ رِضًا مِّنْکَ بِمَا قَسَمْتَ لِیْ اَنْتَ وَلِیّیْ فِی الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَۃِ ۔ تَوَفَّنِیْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِیْ بِالصَّالِحِیْن ط اَللّٰهُمَّ لاَ تَدَعْ ذَنْباً لَنَا فِیْ مَقَامِنَا هٰذَا اِلاَّ غَفَرْتَہ، وَ لاَهَمًّا اِلاَّ فَرَّجْتَہ، وَ لاَ حَاجَۃاِلاَّ قَضَیْتَهَا وَ یَسَّرْتَها فَیَسِّرْ اُمُوْرَنَا وَاشْرَحْ صُدُوْرَنَا وَ نَوِّرْ قُلُوْبَنَا وَاخْتِمْ بِالصَّالِحَاتِ اَعْمَالَنَا اَللّٰهُمَّ تَوَفَّنَا مُسْلِمِیْنَ وَ اَلْحِقْنَا بِالصَّالِحِیْنَ غَیْرَ خَزَایَا وَ لاَ مَفْتُوْنِیْنَ اٰمِیْنَ ط یَا رَبَّ الْعَالَمِیْنَ ط

ژباړه: ای الله تاته زما پټ او ښکاره هرڅه ښکاره دي زما عذر ومنه ، ته زما په حاجت باندې ښه پوهېږې زه چې څه غواړم را یې کړه او ته په هغه څه هم پوهېږې چې زما په زړه کې دي زما ګناهونه راته معاف کړه زه لتا څخه داسې ایمان غواړم چې په زړه کې مې وي او داسې رښتونی یقین غواړم چې دهغه نه وروسته زه په کلکه پوه شم چې ماته صرف هغه څه را رسیږي چې کوم ماته تا لیکلي وي او زما په زړه کې په هغه څه باندې رضا را واچوه چې تا را تقسیم کړي دي ته زما ولي یې په دنیا او

آخرت کې ما په داسې حالت کې مړ کړه چې زه مسلمان وم او د نیکانو سره مې یو ځای کړه ، ای الله پدې ځای کې ماته یوه ګناه هم داسې مه پرېږده چې تا معاف کړې نه وي ، داسې مشکل ماته مه پرېږده چې تا حل کړی نه وي، داسې حاجت ماته مه پرېږده چې تا پوره کړی نه وي او اسانه کړی دې نه وي زمونږ کارونه مونږ ته اسانه کړه زمونږ سینې خلاصې کړه زمونږ زړونه روښانه کړه او زمونږ خاتمې په خیر کړه ای الله مونږ په داسې حالت کې مړه کړه چې مونږ مسلمانان یو او د نیکانو سره مو یو ځای کړه په داسې حالت کې چې مونږ شرمېدلي نه وو او نه په فتنه کې اچول شوي وو آمین یا رب العلمین .

ددې دعا نه وروسته زمزم ته راشه مخ قبلې ته کړه او بسم الله ووایه او اوبه وڅښه او بیا ورپسې دا دعا ولوله .

**اَللّٰهُمَّ اِنِیّْ اَسْئَلُکَ عِلْمًا نَافِعًا وَّ رِزْقًا وَاسِعًا وَّ شِفَاءً مِّنْ کُلِّ دَآء**

ژباړه: ای الله زه لتا څخه غواړم فایده من علم ، فراخه روزي او له هرې بیمارۍ نه شفاء.

## په طواف کې اضطباع او رمل

هغه کسان چې نفلي طواف کوي نو هغوی صرف د کعبې معظمې نه تاویږي او هغه

کسان چې د عمرې يا حج لپاره طواف کوي
هلته دوه خبرې پکې نورې هم ضروري دي
اضطباع او رمل اضطباع دېته وايي
چې د څادر توټه په چپه اوږه باندې
واچوله شي او تر ښي لاس لاندې وويستل
شي او ښۍ اوږه ترېنه لوڅه پاتې شي
نو د حج او عمرې لپاره چې کوم کسان
طواف كوي هغه به احرام همداسې آغوندي
او كه پدې وخت كې د مانځه وخت شو نو
مانځه ته به بيا څادر داسې واغوندي
چې دواړه اوږې پكې پټې شي او دوهمه
ضروري خبره رمل (په پهلواني سره
تلل) دى دا داسې حركت دى لكه د
پهلوانانو او په اولو دريو شوطونو كې
به طواف كونكى خپلې اوږې داسې ښوروي
لكه پهلوان چې مقابلې ته وړاندې كيږي
او دا هم سنت دي .

يادګېرنه : په پهلواني سره تلل د ښځو
لپاره نه دي صرف د سړيو لپاره سنت دي
.

هغه كسان چې د عمرې لپاره دا طواف
وكوي يا حاجي متمتع او يا قارن وي نو
ددېنه وروسته د صفا او مروه په مېنځ
كي سعى (تلل راتلل) هم كول دي او د
حاجي مفرِد لپاره دا طواف طواف قدوم
دى او ددينه وروسته په هغه باندې
ضروري نه دي چې بايد سعى هم وكوي او

دا هم وربانديې ضروري نه دي چې بايد دی په طواف کې رمل او اضطباع وکوي او هغه بيا سعی د طواف زيارت نه وروسته کوي که حاجي مفرِد غواړي چې د همدې طواف نه وروسته سعی هم وکوي نو بيا به په طواف کې رمل او اضطباع هم کوي .

## د صفا او مروه په مينځ کې سعی (تلل را تلل) کول

يادښت :

هغه سعی چې د قربانۍ نه وروسته کيږي او يا د طواف زيارت نه وروسته کيږي د احرام پابندي نه لري . او هغه سعی چې د عمرې لپاره کيږي او يا يې حاجي د عرفات تر درېدلو مخکې کوي نو بيا احرام ورته ضروري دی .

د حج د سعی لپاره غوره وخت يوم النحر (د ذی الحجې لسم ) ده چې طواف زيارت وشي او ددې ورځې نه يې وروسته کول مکروه دي .

ترڅو چې سخت ضرورت نه وي نو سعی کول په پښو باندې لازم دي او که د ګرځېدلو نه معذور وي نو بيا کولی شي نقليه وسيله هم استعمال کړي .

# د سعی کولو سنت طریقه




وروسته ددې چې د طواف نه او د طواف د دوه رکعته مونځ نه او د زمزم د څښلو نه فارغ شې د رسو الله صلی الله علیه وسلم سنت دادي چې د باب الصفا نه به بهر شې او له کومې بلې دروازې نه بېرته را ننوزي او د مروه ساحې ته به ورشې چې پخوا دلته غونډۍ وه په هغې باندې تر دې حده پورې ختل ضروري وو چې جنت المعلی درته ښکاره شي او اوس خو پدې ځای ابادي شوې او د صفا تپه اوس هموار ځای دی همدې ځای ته ورتلل دي اوس بیا به مخ د کعبې په لورې کړې او د سعی لپاره به پدې ډول نیت وکوې : ای الله د صفا او مروه په مینځ کې مې د اوو دورو سعی اراده کړېده ستا د رضا لپاره ته یې راته اسانه کړې او لما څخه یې قبوله کړې که دا نیت په

زړه کې را تاو کړي هم بس ده لکن که په ژبه پرې تلفظ وکوې نو غوره دی لاسونه په همدې ډول باندې پورته ونیسه او کلمه توحید او کلمه تمجید ووایه او د الله تعالی د ټولو نعمتونو شکریه اداء کړه په خاصه توګه ددې نعمت شکریه چې ته یې خپل کور ته او دې مقدس مقام ته ورسولې دخپلو ضرورتونو لپاره دعا وکوه پدې ځای کې هم دعا قبلیږي پدې ځای کې سنت اذکار په لاندې ډول دي .

**لاَ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰہُ وَحْدَہ‘ لاَ شَرِیْکَ لَہ‘ لَہُ الْمُلْکُ وَ لَہُ الْحَمْدُ یُحْیِیْ وَ یُمِیْتُ وَ ھُوَ عَلٰی کُلِّ شَیٍٔ قَدِیْرٌ لاَ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰہُ وَحْدَہ‘ اَنْجَزَ وَعْدَہ‘ وَ نَصَرَ عَبْدَہ‘ وَ ھَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَہ‘**

ژباړه: نشته لائق د عبادت مګر الله دی هغه یوازې دی شریک نه لري همده لره بادشاهي ده او همده لره ثناء ده الله تعالی ژوندي کول کوي او مړه کول کوي او هغه په هرشي باندې قادر دی نشته لائق د عبادت مګر یوازې الله دی هغه یوازې دی خپله وعده یې پوره کړه د خپل بنده سره یې مرسته وکړه او ډلو ته یې ماتې ورکړه .

ددېنه وروسته لاندینی دعا هم سنت ده .

**اَللّٰھُمَّ اِنَّکَ قُلْتُ ادْعُوْنِیْ اَسْتَجِبْ لَکُمْ وَ اِنَّکَ لاَ تُخْلِفُ الْمِیْعَادَ ط وَ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ کَمَا ھَدَیْتَنِیْ لِلْاِسْلاَمِ اَنْ لاَّ تَنْزِعَہ‘**

حَتّٰى تَوَفَّانِیْ وَ اَنَا مُسْلِمٌ ط

ژباړه: ای الله تا ویلي دي چې زمانه دعا وغواړئ زه یې قبلوم او ته د خپلو وعدو نه مخالفت نه کوې او زه لتا څخه سوال کوم چې څرنګه چې ماته دې هدایت کړی دی د اسلام لوري ته ما ته تر هغه وخته پورې مرګ مه رواله مګر چې په داسې حالت کې مړشم چې زه مسلمان وم .

ددې دعا او اذکارو کولو نه وروسته د صفا په لوري حرکت وکوه او په لاره باندې دا ذکر له ځان سره کول هم سنت دی .

رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاَنْتَ الْاَعَزُّ الْاَکْرَمُ

یعني: ربه بښنه وکوه رحم وکوه ته غالب یې او ته د عزت مالک یې.

ددینه بغیر هم ته هره دعا کولی شې او دا ځای هم له هغه ځایونو څخه دی چې دعا پکې قبلیږي .

یادښت :

که څوک په سپرلۍ باندې ځي هغه کولی شي خپله سپرلې تیزه هم بوزي که نورو ته د تکلیف لامل نه ګرځېدو .

سعی اوه شوطه ده لکه طواف چې اوه شوطه وو چې د صفا نه روان شي او مروه ته ورسیږي دا یو شوط ګڼل کیږي

له هغه ځای نه به دوهم شوط هم په همدې ډول شروع کړي لکه اول او صفا خواته به را روان شي صفا ته له را رسېدلو سره به دریم شوط پوره شي په همدې ډول به اوه شوطونه پوره کړي .

د سعی د پوره کېدلو نه وروسته به هم دوه رکعته مونځ وکوي چې د مسجد حرام په هره ساحه کې وي نو خیر دی او که یې د باب عمرې سره وکوي نو غوره به وي .

په سعی کې پاک ځان او اودس او پاکو جامو ته ترجیح ورکوله کیږي .

## وروسته د سعی نه

که چېرته دا احرام د عمرې لپاره اچول شوی وو او یا حاجي متمتع وو نو اوس هغه وخت راغلی دی چې د احرام د قیدونو څخه به خلاص شي د سعی نه وروسته به سر وخریې او یا به څه وېښته تري قطع کړې او پدې سره به ته له احرام څخه را ووزې که صرف د عمرې اراده وه نو اوس ته عام لباس آغوستلی شې لکه د مکې اوسېدونکی داسې ژوند کولی شي او که د تمتع حج اراده وي نو اوس تر آتم د ذی الحجې پورې صبر وکوه په هغه ورځ به بیا احرام آغوستل وي او د حج کارونه شروع کیږي

.

یادښت :

پدې ورځو کې حاجي کولی شي څومره چې غواړي نفلي طوافونه وکوي او په هغې کې اضطباع او رمل ته ضرورت نه وي او نه پکې شمېره وي طواف هم لکه نفلي مونځ غوندي عبادت دی .

په سعی کې د مختلفو شوطونو خپلې خاصې سنت دعاګانې:

د **اول شوط** لپاره سنت دعا چې له صفا نه شروع کیږي د مروه په لوري پکې تلل وي .

اَللّٰهُ اَكْبَرْ ـ اَللّٰهُ اَكْبَرْ ـ اَللّٰهُ اَكْبَرْ اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا وَّ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيْمِ وَ بِحَمْدِهِ الْكَرِيْم بُكْرَةً وَّ اَصِيْلاً ، وَّ مِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْهُ لَہ‘ وَ سبِّحْہُ لَيْلاً طَوِيْلاً، لاَ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَه‘ اَنْجَزَ وَعْدَه‘ وَ نَصرَ عَبْدَه‘ وَ هَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَه‘ لاَ شَئَ قَبْلَہُ وَ لاَ بَعْدَهُ يُحْيِیْ وَ يُمِيْتُ وَ هُوَ حَیٌّ دَائِمٌ لاَ يَمُوْتُ وَ لاَ يَفُوْتُ اَبَدًا بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَ اِلَيْہِ الْمَصِيْرُ وَ هُوَ عَلٰی كُلِّ شِئٍ قَدِيْرٌ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَ تَكَرَّم وَ تَجَاوَزْ عَمَّا تَعْلَمُ اِنَّکَ تَعْلَمُ مَا لاَ نَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ اَللّٰهُ الْاَعَزُّ الْاَكْرَمُ رَبَّنَا نَجِّنَا مِنَ النَّارِ سَالِمِيْنَ غَانِمِيْنَ فَرِحِيْنَ مُسْتَبْشِرِيْنَ مَعَ عِبَادِکَ الصَّالِحِيْنَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِيْنَ وَ حَسُنَ اُولٰئِکَ رَفِيْقًا ، ذٰلِکَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ وَ كَفٰی بِاللّٰهِ عَلِيْمًا، لاَ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰهُ وَ لاَ نَعْبُدُ اِلاَّ اِيَّاه‘

مُخْلِصِيْنَ لَہُ الدِّيْنَ وَ لَوْ كَرِىَ الْكَافِرُوْنَ ـ

کـلـه چې مـروه تـه ورسيږي نـو دا آيـت بـه ولـولـي .

اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْہِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلَيْمٌ

ژبـاړه : بېشکه صفـا او مـروه د الله تـعـالـى لـه نـښو څخه دي هغه کسان چې حج کـوي او يـا عمره کـوي مـشکل نـشتـه که ددوی دواړو پـه مـيـنـځ کې تـګ را تـګ وکـوي هغه څـوک چې نـيـک کـار وکـوي بـېشکـه الله تـعـالـى اجر ورکـونـکی او پـه هرڅه خـبـر دی.

پـه سعی کې د دوهم شوط دعا:

اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُوَ ِللّٰهِ الْحَمْدُ لآ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْفَرْدُ الصَّمَدُ الَّذِیْ لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَّ لاَ وَلَدًا وَّ لَمْ يَكُنْ لَّہ‘ شَرِيْكٌ فِى الْمُلْكِ وَ لَمْ يَكُنْ لَّہ‘ وَلِیٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَ كَبِرّہُ تَكْبِيْرًا۔ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ قُلْتَ فِی كِتَابِكَ الْمُنَزَّلْ اُدْعُوْنِیْ اَسْتَجِبْ لَكُمْ دَعَوْنَاكَ رَبَّنَا فَاغْفِرْلَنَا كَمَا اَمَرْتَنَا اِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيْعَادْ ـ رَبَّنَا اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِیْ ِللْاِيْمَانِ اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْلَنَاذُنُوْبَنَا وَ كَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ، رَبَّنَا وَ اٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَ لاَ تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ اِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ، رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَ اِلَيْكَ اَنَبْنَا وَ اِلَيْكَ الْمَصِيْرُ، رَبَّنَا اغْفِرْلَنَا وَ ِلاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا

بِالْاِيْمَانِ وَ لاَ تَجْعَلْ فِیْ قُلُوْبِنَا غِلاًّ لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا رَبَّنَا اِنَّکَ رَؤفٌ رَّحِيْمO رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَ تَکَرَّمْ وَ تَجَاوَزْ عَمَّا تَعْلَمُ اِنَّکَ تَعْلَمُ مَا لاَ نَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ اللّٰهُ الْاَعَزُّ الْاَکْرَمُ ) ـ (اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَجُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاکِرٌ عَلِيْمٌ)

په سعی کې د دريم شوط دعا:

اَللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبَّنَا اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْلَنَا اِنَّکَ عَلٰی کُلِّ شَیْئٍ قَدِيْرٌ ـ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ الْخَيْرَ کُلَّهٗ عَاجِلَهٗ وَ اَجِلَهٗ وَ اَسْتَغْفِرُکَ لِذَنْبِیْ وَ اَسْئَالُکَ رَحْمَتَکَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَ تَکَرَّمْ وَ تَجَاوَزْ عَمَّا تَعْلَمُ اِنَّکَ تَعْلَمُ مَا لاَ نَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ اللّٰهُ الْاَعَزُّ الْاَکْرَمُ) رَبِّ زِدْنِیْ عِلْمًا وَّ لاَ تُزِغْ قَلْبِیْ بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنِیْ وَ هَبْ لِیْ مِنْ لَّدُنْکَ رَحْمَةً اِنَّکَ اَنْتَ الوَهَّابُ ـ اَللّٰهُمَّ عَافِنِیْ فِی سَمْعِیْ وَ بَصَرِیْ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اَنْتَ ـ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِکَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ـ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اَنْتَ سُبْحَانَکَ اِنِّیْ کُنْتُ مِنَ الظَّالِمِيْنَ ـ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِکَ مِنَ الْکُفْرِ وَالْفَقْرِ ـ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِرِضَاکَ مِنْ سَخْطِکَ وَ بِمُعَا فَاتِکَ مِنْ عُقُوْبَتِکَ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْکَ لاَ اَحْصِیْ ثَنَاءً عَلَيْکَ اَنْتَ کَمَا اَثْنَيْتَ عَلٰی نَفْسِکَ فَلَکَ الْحَمْدُ حَتّٰی تَرْضٰی (اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاکِرٌ عَلِيْمٌ )

په سعی کې د څلرم شوط دعا:

اَللّٰہُ اَکْبَرُ اَللّٰہُ اَکْبَرُ اَللّٰہُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰہِ الْحَمْدُ اَللّٰھُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُکَ مِنْ خَیْرِ مَا تَعْلَمُ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ شَرِّ مَا تَعْلَمْ وَ اَسْتَغْفِرُکَ مِنْ کُلِّ مَا تَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ عَلاَّمُ الْغُیُوْبْ لاَ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰہُ الْملکُ الْحَقُّ الْمُبِیْنُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰہِ صَادِقُ الْوَعْدِ الْاَمِیْنُ۔ اَللّٰھُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُکَ کَمَا ھَدَیْتَنِیْ لِلْاِسْلاَمِ اَنْ لاَ تَنْزِعَہٗ مِنِّی حَتّٰی تَتَوَفَّانِیْ وَ اَنَا مُسْلِمٌ۔ اَللّٰھُمَّ اجْعَلْ فِیْ قَلْبِیْ نُوْرًا وَّ فِیْ سَمْعِیْ نُوْرًا، وَ فِیْ بَصَرِیْ نُوْرًا، اَللّٰھُمَّ اشْرَحْ لِیْ صَدْرِیْ وَ یَسِّرْلِیْ اَمْرِیْ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ شَرِّ وَ سَاوِسِ الصَّدْرِ، وَ شَتَاتِ الْاَمْرِ وَ فِتْنَۃِ الْقَبْرِ، اَللّٰھُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِکَ مِنْ شَرِّ مَا یَلِجُ فِی اللَّیْلِ وَ شَرِّ مَا یَلِجُ فِی النَّھَارِ، وَ مِنْ شَرِّ مَا تَھُبُّ بِہِ الرِّیَاحُ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ، سُبْحَانَکَ مَا عَبْدَنَاکَ حَقَّ عِبَادَتِکَ یَا اَللّٰہُ سُبْحَانَکَ مَا ذَکَرْنَاکَ حَقَّ ذِکْرِکَ یَا اَللّٰہُ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَ تَکَرَّمْ وَ تَجَاوَزْ عَمَّا تَعْلَمُ اِنَّکَ تَعْلَمُ مَا لاَ نَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ اللّٰہُ الْاَعَزُّ الْاَکْرَمْ) (اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَۃَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰہِ فَمَنْ حَجَّ الْبَیْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَیْہِ اَنْ یَّطَّوَّفَ بِھِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَیْرًا فَاِنَّ اللّٰہَ شَاکِرٌ عَلِیْمٌ)O

په سعی کې د پنځم شوط دعا:

اَللّٰہُ اَکْبَرُ اَللّٰہُ اَکْبَرُ اَللّٰہُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰہِ الْحَمْدُ سُبْحَانَكَ مَا شَکَرْنَاكَ حَقَّ شُکْرِكَ یَا اَللّٰہُ، سُبْحَانَکَ مَا اَعْلاَ شَأْنَکَ یَا اَللّٰہُ، اَللّٰھُمَّ حَبِّبْ اِلَیْنَا الْاِیْمَانَ وَ زَیِّنْہٗ فِیْ قُلُوْبِنَا وَ کَرِّہْ اِلَیْنَا الْکُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْیَانَ وَاجْعَلْنَا مِنَ الرَّاشِدِیْنَ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَ تَکَرَّمْ وَ تَجَاوَزْ عَمَّا تَعْلَمُ اِنَّکَ تَعْلَمُ مَا لاَ نَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ اللّٰہُ الا عَزُّ الْاَکْرَمُ) اَللّٰھُمَّ قِنِیْ عَذَابَکَ یَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَکَ، اَللّٰھُمَّ

اهْدِنِیْ بِالْهُدٰی وَ نَقِّنِیْ بِالتَّقْوٰی، وَاغْفِرْلِیْ فِی الْاٰخِرَةِ وَ الْاُوْلٰی۔ اَللّٰهُمَّ ابْسُطْ عَلَیْنَا مِنْ بَرَکَاتِکَ وَ رَحْمَتِکَ وَ فَضْلِکَ وَ رِزْقِکَ۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْاَلُکَ النَّعِیْمَ الْمُقِیْمَ الَّذِیْ لاَ یَحُوْلُ وَ لاَ یَزُوْلُ اَبَدًا۔ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِیْ قَلْبِیْ نُوْرًا، وَ فِیْ سَمْعِیْ نُوْرًا، وَ فِیْ بَصَرِیْ نُوْرًا، وَ فِیْ لِسَانِیْ نُوْرًا، وَ عَنْ یَمِیْنِیْ نُوْرًا، وَ مِنْ فَوْقِیْ نُوْرًا، وَاجْعَلْ فِیْ نَفْسِیْ نُوْرًا، وَ عَظِّمْ لِیْ نُوْرًا ، رَبِّ اشْرَحْ لِیْ صَدْرِیْ وَ یَسِّرْلِیْ اَمْرِیْ (اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَیْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَیْهِ اَنْ یَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَیْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاکِرٌ عَلِیْمٌ۔

په سعی کې دشپږم شوط دعا:

اَللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَه‘ صَدَقَ وَعْدَه‘، وَ نَصَرَعَبْدَه‘ وَ هَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَه‘، لآ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَ لاَ نَعْبُدُ اِلاَّ اِیَّاه‘ مُخْلِصِیْنَ لَه‘ الدِّیْنَ وَ لَوْ کَرِهَ الْکَافِرُوْنَ، اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْاَلُکَ الْهُدیٰ وَالتُّقٰی وَالعَفَافَ وَالْغِنٰی۔ اَللّٰهُمَّ لَکَ الْحَمْدُ کَالَّذِیْ تَقُوقلُ وَ خَیْرًا مِمَّا نَقُوْلُ۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْاَلُکَ رِضَاکَ وَالْجَنَّةَ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنْ سَخَطِکَ وَالنَّارِ وَ مَا یُقَرِّبُنِیْ اِلَیْهَا مِنْ قَوقلٍ اَوْ فِعْلٍ اُوعَمَلٍ۔ اَللّٰهُمَّ بِنُوْرِکَ اهْتَدَیْنَا وَ بِفَضْلِکَ اسْتَغْنَیْنَا وَ فِیْ کُنْفِکَ وَ اِنْعَامِکَ وَ عَطَائِکَ وَ اِحْسَانِکَ اَصْبَحْنَا وَاَمْسَیْنَا۔ اَنْتَ الْاَوَّلُ فَلاَ قَبْلَکَ شَیْءٍ ۔ وَالْآخِرُ فَلاَ بَعْدَکَ شَیْءٍ وَالظَّاهِرُ فَلاَ شَیْءٍ فَوْقَکَ وَالبَاطِنُ فَلاَ شَیْءٍ دُوْنَکَ نَعُوْذُبِکَ مِنَ الْفَلْسِ وَالْکَسَلِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَفِتْنَةِ الْغِنٰی وَنَسْاَلُکَ الْفَوْزَ بِالْجَنَّةِ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَ تَکَرَّمُ وَ تَجَاوَزْعَمَّا تَعقلَمْ اِنَّکَ تَعْلَمُ مَا لاَ نَعْلَمُ اِنَّکَ اَنْتَ اللّٰهُ

الْاَعَزُّ الْاَكْرَمُ ) (اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلَيْمٌ )

په سعی کې د اوم شوط دعا :

اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْراً وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَيّ الْاِيْمَانَ وَ زَيِّنْہُ فِىْ قَلْبِىْ وَ كَرِّه اِلَىَّ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ وَاجْعَلْنِىْ مِنَ الرَّاشِدِيْنَ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاعْفُ وَتَكَرَّمْ وَ تَجَاوَزْعَمَّا تَعْلَمُ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا لَا نَعْلَمُ اِنَّكَ اَنْتَ اللّٰهُ الْاَعَزُّ الْاَكْرَمُ) اَللّٰهُمَّ اخْتِمْ بِالْخَيْرَاتِ آجَالَنَا وَ حَقِّقْ بِفَضْلِكَ آمَا لَنَا وَسَهِّلْ لِّبُلُوْغِ رِضَاكَ سُبُلَنَا وَحَسِّنْ فِىْ جَمِيْعِ الْاَحْوَالِ اَعْمَالَنَا، يَا مُنْقِذَا لْغَرْقٰى يَا مُنْجِىَ الْهَلْكٰى، يَا شَاهِدَ كُلِّ نَجْوٰى، يَا مُنْتَهٰى كُلِّ شَكْوٰى، يَا قَدِيْمَ الْاِحْسَانِ يَا دَائِمَ الْمَعْرُوْفِ يَا مَنْ لاَّ غَنِىً بِشَىْءٍ عَنْہُ وَ لاَ بُدَّ لِكُلِّ شَىْءٍ مِنْہُ يَا مَنْ رِزْقُ كُلِّ شَىْءٍ عَلَيْہِ وَ مَصِيْرُ كُلِّ شَىْءٍ اِلَيْہِ. اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ عَائِذٌ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا اَعْطَيْتَنَا وَ مِنْ شَرِّ مَا مَنَعْتَنَا. اَللّٰهُمَّ تَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ وَاَلْحِقْنَا بِالصَّالِحِيْنَ غَيْرَ خَزَايَا وَ لاَ مَفْتُوْنِيْنَ، رَبِّ يَسِّرْ وَ لاَ تُعَسِّرْ، رَبِّ اَتْمِمْ بِالْخَيْرِ (اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِعْتَمَرَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْہِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا وَ مَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلِيْمٌ)

## منی ته سفر

نن د ذی الحجې آتم دی نن منی ته روانېدل دي د حاجي قارن او حاجي مفرد احرامونه تیار په غاړو کې دي او

متمتع چې د عمرې نه وروسته يې احرام لرې کړی وو هغه به نن له حرم نه خپل احرام بيا آغوندي حرم ته به لاړ شي يو څه طواف به وکوي او بيا به احرام واغوندي او د حج نيت به داسې وکوي :
ای الله زه د حج لپاره نيت کوم ماته يې اسانه کړه او لما څخه يې قبول کړه او ددې نيت نه وروسته به تلبيه ويل شروع کړي .

لَبَّيْکَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْکَ، لَبَّيْکَ لاَ شَرِيْکَ لَکَ لَبَّيْکَ اِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَکَ وَالْمُلْکَ لاَ شَرِيْکَ لَکَ

چې د تلبيې ويل دې شروع کړل د احرام قوانين بيا پر تا باندې نافذ شول او له ټولو هغه شيانو به اوس ځان ساتې چې مخکې تېر شول اوس منی ته روان شه او د روانېدو په وخت کې دا دعا لوله :

اَللّٰهُمَّ اِيَّاکَ اَرْجُوْوَلَکَ اَدْعُوْ وَارْزُقْنِیْ صَالِحَ عَمَلِیْ وَاغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ وَاسْتُرْعُيُوْبِیْ۔ وَ طَهِّرْ قَلْبِیْ وَ فِکْرِیْ وَاشْرَحْ لِیْ صَدْرِیْ وَ يَسِّرْلِیْ اَمْرِیْ وَ عَافِنِیْ فِيْمَا عَافَيْتَ وَامْنُنْ عَلَیَّ بِمَا مَنَنتَ بِہٖ عَلٰی اَهْلِ طَاعَتِکَ اِنَّکَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ ط اَللّٰهُمَّ اِلَيْکَ تَوَجَّهْتُ وَ وَجْهَکَ الْکَرِيْمَ اَرَدْتُّ فَاجْعَلْ ذَنْبِیْ مغْفُوْرًا وَ حَجِّیْ مَبْرُوْراً ، اِنَّکَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ۔

ژباړه: ای الله ستا نه زه اميد کوم او ستا نه دعا غواړم ماته د نيکو عملونو

توفیق راکړه زما ګناهونه راته معاف کړه زما زړه راته پاک کړه زما ذهن راته پاک کړه زما سینه راته خلاصه کړه زما کار راته اسان کړه ما ته په هغه کسانو کې بشنه وکوه چې تا ورته بشنه کړیده ما سره د هغه شي احسان وکوه چې تا دخپل طاعت کونکو سره پرې احسان کړی دی ته په هرڅه باندې قادر یې ای الله ما تاته مخ اړولی دی او ستا معزز ذات رضا کول زما مطلب دی زما ګناهونه راته معاف کړه زما حج راته قبول کړه ته په هرڅه باندي قادر یې.

منی ته په لاره باندې به ستا ژبه په تلبیه او ذکر او لاندې دعا باندې شوریږي .

**رَبَّنَا اٰتِنَا فِی الدُّنْیَا حَسَنَةً وَّ فِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ۔**

ژباړه: ای زما ربه راکړې مونږ ته په دې دنیا کې نیک او په آخرت کې هم راکړې نیک او مونږ د اور له عذاب نه وساته .

او چې کله دې په منی باندې سترګي ولګیږي او وویني چې دا د منی ساحه ده نو دا دعا به ولولي:

**اَللّٰهُمَّ هٰذَا مَنًی فَامْنُنْ عَلَیَّ بِمَا مَنَنْتَ بِهٖ عَلٰی اَوْلِیَائِکَ**

ژباړه: ای الله دا منی ده په ما باندې دهغه شي احسان وکوه چې تا په خپلو دوستانو باندې کړی دی .

که په منی کې درته ممکنه وه نو د مسجد خیف سره نیږدې هستوګنه غوره کړه ترڅو په ښه طریقه سره ټول مونځونه وکوې او یاد لره چې د نن د آتم د ماسپښین نه واخله د نهم (د عرفات د ورځې) تر سهار پورې دا پنځه مونځونه دي دا به هم ټول ته په جمع سره اداء کوې او شپه به هم همدلته تیروې دا هم سنت دي .

مسجد خیف په منی کې د هغه لوی جومات نوم دی چیرته چې رسول الله صلی الله وسلم په حجة الوداع کې خطبه ورکړې وه ددې جومات په مینځ کې د شرقي دېوال خواته یوه لویه ګنبد ده تر دې ګنبد لاندې لوی لوی قوسونه دي پدې قوسونو کې تر یو لاندې د رسو ل الله صلی الله علیه وسلم خیمه وه او ددې جمات په بهتري کې ډېر روایتونه راغلي دي یو روایت دا هم دی چې پدې جومات کې اویا پیغمبرانو مونځونو کړي دي چې یو په هغو کې حضرت موسی علیه السلام وو .

لکه مخکې چې تیر شول چې د حاجې دلته پنځه مونځونه راځي د آتم د ورځې د ماسپښین نه واخله د عرفات د ورځې تر

سحر پورې .

## د حج دوهمه ورځ (دعرفات ورځ)

نن ډېره لويه او د قدر وړ ورځ ده د حج په رکنونو کې تر ټولو لوی رکن دادی چې نن به پر ځای کيږي نن هغه ورځ ده چې بنده به خپل ځان د خپل مولا په خدمت کې وړاندې کوي نن د الله تعالی بندګان ټول دعرفات ميدان ته ددې لپاره ځي چې خپلې جولۍ د مغفرت او برکاتو څخه را ډکې کړي د لمر د راختلو سره به هرڅوک د منی څخه د عرفات په لوري حرکت کوي د زړه په شوق سره به د تلبيې او نورو اذکارو تلاوت کوي او تلبيه به روانه وي او راتلونکې کلمه ويل پدې وخت کې ډېر ثواب لري:

لاَ اِلٰہَ اِلاَّ اللّٰہُ وَحْدَہ، لاَ شَرِيْکَ لَہ، لَہُ الْمُلْکُ وَ لَہُ الْحَمْدُ يُحْيِیْ وَ يُمِيْتُ وَ هُوَ حَیٌّ لاَّ يَمُوْتُ ط بِيَدِہِ الْخَيْرُ ط وَ هُوَ عَلٰی کُلِّ شَیٍٔ قَدِيْرٌ

# د عرفات میدان



د عرفات میدان له هر لوري نه ډېره فراخه زمکه ده او حدونه یې هر طرف ته تعین شوي دي سعودي حکومت د حدونو د تعین لپاره پایې لګولې دي او څرنګه چې په عرفات درېدل د حج یو لوی رکن دی نو بیاد تر خپلو معینو حدونو څخه بهر ونه کول شي د عرفات په میدان کې یو لوی جومات د مسجد نمره په نوم باندې چې ویل کیږي دا د حضرت ابراهیم علیه السلام په لاس باندې جوړ شوی وي اباد دی ددې سره یوه وړوکې د زمکې ټوټه چې د جومات د غربي دېوال سره ده

دېته بطن عرنه وايي پدې ځاى کې درېدل له عرفات نه بهر دي ، د عرفات په ميدان کې په هر ځاى کې درېدل کافي دي لکن که په جبل الرحمة (د رحمت غونډۍ) باندې څوک ودرېږي نو دا غوره خبره ده او چې کله دې د ورتلو په وخت کې په جبل الرحمة باندې اول نظر ولګيږي نو لاندې دعا ولوله .

**اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِىْ وَ تُبْ عَلَىَّ وَاَعْطِنِىْ سُوْء لِىْ وَ وَجِّهْ لِىَ الْخَيْرَ اَيْنَمَا تَوَجَّهْتُ سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اللّٰهُ اَكْبَرْ ط**

ژباړه: اى الله ما وبښه ، زما دعا قبوله کړه ، زه چې څه غواړم هغه راکړه ، چېرته چې زه ځم د خير خواته مې مخه کړه پاکې ده الله تعالى لره ثنا ده هغه لره نشته لائق د عبادت مګر يو الله دى الله لوى دى .

## په عرفات درېدل

په عرفات د درېدلو نه مطلب دادى چې انسان بايد د عرفات په ورځ د عرفات په ميدا کې ودريږي او د لمر د زوال نه تر لمر لوېده پورې درېدل دلته فرض دي او ښه خبره داده چې که اسباب او سهولتونه وي چې عرفات ته د رسېدلو سره انسان غسل وکوي خو پدې غسل کې صرف په ځان باندې اوبه اړول دي او ځان موښل پکې نشته او دا غسل سنت دى

او که غسل نه وي نو اودس هم کافي دی .

د حاجیانو لپاره د عرفات ورځ د دعاګانو او استغفارونو ورځ ده څومره چې دې وس وي دعاګانې وکوه او د الله سره مناجات وکوه د خپلو ګناهونو بښنه وغواړه دلته به د نن ماسپښین د مانځه سره خطبه وي اما المسلمین یا به دهغه نماینده راځي او هغه به خطبه وړاندې کو او د ماسپښین او مازیګر مونځونه به دواړه په یو ځای اداء کیږي او که چېرته څوک جمع ته ونه رسیږي هغه به بیا ماسپښین او مازیګر مونځونه دواړه په یو ځای نه کوي هغه به یې بېل بېل په خپل وخت سره وکوي صرف که په امام پسې مونځونه کېدل نو د هغه سره به یې په یو ځای وکوي د عرفات ورځ ټوله د عبادت ورځ ده هر قسم ذکر ، توبه، استغفار، د قران کریم تلاوت دلته زیات ثواب لري د عرفات په ورځ په دعا کې لاس پورته کول سنت دي او که لاسونه ستړي شي نو بیا خیر دی که د ښکته لاسونو سره هم دعا وشي لکه د رسول الله صلی الله علیه و سلم نه چې نقل شوي دی چې مبارک لاسونه یې دری ځله پورته کړل او هغه به چې ستړي شول بیا به یې ښکته کړل او بیا یې ښکتنۍ دعا وویله :

لَآ اِلٰہَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَہ، لَا شَرِيْکَ لَہ، لَہُ الْمُلْکُ وَ لَہ، الْحَمْدُ اللّٰهُمَّ اهْدِنِیْ بِالْهُدٰی وَ نَقِّنِیْ بِالتَّقْوٰی وَاغْفِرْلِیْ فِی الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰی۔

ژباړه: نشته لائق د عبادت مګر يوازې الله دی هغه يوازې دی شريک نلري هغه لره بادشاهي ده او هغه لره ثناء ده اى الله ماته هدايت وکوه په هدايت سره ، ما پاک کړه په تقوی سره، او ما په دنيا او آخرت کې معاف کړه .

ددې دعا نه وروسته يې بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل لاسونه د يو څه وخت لپاره ښکته نيولي وو ترڅو چې د لاسونه يې دمه جوړه شي او پدې وخت کې يې سورت فاتحه ويله او بيائې لاسونه پورته کړل او پورتنۍ دعا يې بيا ويله .

ددې وخت لپاره د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه ډېرې دعاګانې را نقل کړل شوي دي که هغه تاته يادې نه وي نو لاندې دعاګانې تکرار کوه .

۱:-لَآ اِلٰہَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَہ، لَا شَرِيْکَ لَہ، لَہُ الْمُلْکُ وَ لَہ، الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْ ءٍ قَدِيْرٌ [۱]

ژباړه: نشته لائق د عبادت مګر يو الله دی هغه يوازې دی شريک نه لري هغه لره بادشاهي ده او هغه لره ثنا ده هغه په هر شي باندې قادر دی .

۲:-اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ ظُلْمًا کَثِيْرًا وَّ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّآ اَنْتَ فَاغْفِرْلِیْ مَغْفِرَةً مِّنْ عِنْدِکَ وَارْحَمْنِیْ اِنَّکَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ۔

ژباړه: اى الله ما په ځان باندې ډېر ظلم کړى دى او د تا نه بغير بل څوک ګناهونه نه بښي ته ماته له خپل لوري نه بښنه وکوه او په ما باندې رحم وکوه بېشکه ته بښونکى او مهربان يې .

۳:ـ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِىْ مَغْفِرَةً تَصْلَحُ بِهَا شَأْنِىْ فِى الدَّارَيْنِ وَ تُبْ عَلَىَّ تَوْبَةً نَصُوْحًا اَنْكُثُهَا اَبَدًا وَ اَلْزِمْنِىْ سَبِيْلَ الْاِسْتِقَامَةِ لَا اَزِيْغُ عَنْهَا اَبَدًا۔

ژباړه : اى الله ماته داسې بښنه وکوه چې په دواړو جهانونو کې مې کار پرې جوړ شي ماته د خالصې توبې ويستلو توفيق راکړه ماپه مستقيمه لاره برابر کړې چې دهغې نه بيا کله هم بې لارې نه شم .

۴:ـ اَللّٰهُمَّ اَصْرِفْنِىْ مِنْ ذُلِّ الْمَعْصِيَةِ اِلٰى عِزِّ الطَّاعَةِ

ژباړه: اى الله ما د ګناهونو د ذلت نه ستا د اطاعت عزت طرف ته واړوه .

لنډه دا چې تر کومه وخته چې ته په عرفات باندې ولاړ يې دا ټول وخت به ستا په دعا او ذکر او استغفار کې تېرېږي .

يادښت :که چېرته دې د لمر لوېده نه وړاندې د عرفات ميدا ن پرېښود نو حلاله در باندې لازمه شوه .

له عرفات څخه مزدلفې ته حرکت کول

مزدلفې ته په لاره باندې په تلبيه ، ذکر، دعا او درود باندې مصروف اوسېږه دا د ماښام د مانځه وخت دى خو ته به

ماښام مونځ نه په عرفات کې کوې او نه به يې په لاره د کولو کوښښ کوې چې کله مزدلفې ته ورسېږې دلته به د ماښام مونځ د ماسختن د مانځه سره په يو ځاى سره وکوې او که ته په داسې وخت کې مزدلفې ته ورسېدې چې لا تر اوسه د ماسختن وخت نه دى نو صبر وکړه د ماسختن تر وخته پورې چې کله د ماسختن مونځ روا شي بيا به دماښام هم ورسره وکړې او په مزدلفه کې شپه د ليلة القدر نه غوره ده نو کوښښ وکوه چې ټوله په عبادت ، ذکر او مانځه کې تېره کړې .

## د حج دريمه ورځ (يوم النحر د ذى الحجې لسم)

نن د لوى اختر ورځ ده خو د حج له امله حاجيان له کلني عبادت د لوى اختر د مانځه څخه مستثنى دى ددوى په غاړه د حج نور کارونه دي .

لمړى کار په مزدلفه کې حصارېدل دي چې کله له عرفات نه حاجيان راشي شپه په مزدلفه کې تېرول سنت دي او د سحر د راختلو نه د لمر د پورته کېدلو لپاره دلته پاتې کېدل واجب دي .

په مزدلفه کې ته په هرځاى کې درېدلى شې صرف په يو خاص ځاى چې وادي محصر

ورته وايي دلته درېدل مکروه دي او دا هغه ځای دی چې په کوم ځای کې اصحاب الفيل ته سزا ورکړل شوې وه .

## د مزدلفې نه منی ته حرکت کول

په مزدلفه کې به د درېدلو په وخت کې ستا خوله په ذکر او دعاګانو باندې مصروفه وي او د سحر لمر ختلو په وخت به د مزدلفې نه منی ته روان شې کله چې په وادي محصر باندې تېرېږې په زړه کې د الله تعالی قدرتونه او د هغه سزا ورکول ياد ساته .

په منی کې ستا اول کار د جمرة العقبې رمی (په شګو ويشتل ) ده او دا رمی واجب ده په منی کې درې ځايونه دي جمرات ورته وايي لمړۍ جُمره د مسجد خيف سره نېږدې ده او دېته لمړۍ جمره هم وايي دوېمې ته جمره وسطی ( مينځنۍ جمره) او درېمې ته جمره عقبی ( وروستنۍ جمره) وايي کومه چې د منۍ په آخر کې ده .

جمره به ته په هغه اوو شګو باندې ولې کومې چې تا له ځان سره له مزدلفې نه وړي دي او دا سنت دي او که ته د بل ځای نه شګې واخلې نو هم کولی شې خو په جمره باندې چې کومې ور وېشتل شوې وي

که هغې ته ستا لاس ورسيږي هم ته به يې نه ترېنه را اخلې .

درمى لپاره سنت وخت د سحرد لمر خاته نه تر غرمې پورې دى او بيا د غرمې نه وروسته تر لمر لوېده پورې هم صحيح ده د لمر لوېده نه وروسته د ځوانانو او جوړو انسانانو لپاره مکروه ده بيماران، او د زيات عمر خاوندان او زنانه يې بيا هم کولى شي .

شګې بايد پاکې وي که ستا پکې شک وي نو ويې وينځه د آته فيته په فاصله کې به ترېنه درېږې د هرې شګې نه وړاندې به ووايې بسم الله اکبر او بيا راتلونکې دعا ولولې .

**رَغْمًا لِلشَّيْطٰنِ ط١ وَ رَضِىً لِرَّحْمٰنِ ط١اَللّٰهُمَّ اجْعَلْہُ حَجًّا مَبْرُوْراً وَّ سَعْيًا مَشْكُوْرًا وَّ ذَمْبًا مَغْفُوْرًا.**

وروسته ددېنه چې رمى د ختمه شي ددعا لپاره د رمى په ځاى کې مه حصارېږه او که چېرته د اختر په ورځ لتا نه رمى پاتې شوه او ددېنه وروسته په راتلونکې شپه هم تا ونشو کولى نو حلاله دربانده واوښته .

که کومه شګه په هغه ساحه کې ونه غورځېده چې تر ځلي نه تاو شوېده دا شګه نه حسابيږي دا به بيا واړول کيږ ي .

د لوی اختر په ورځ د حاجیانو لپاره دریم عمل قربانـي :

هغه حاجي چې حج قِران یا تمتع کوي په هغو ی باندې قرباني کول واجب دي هغوی به قرباني وکوي او بیا به سر وخریي یا به وېښته پرې کړي او که نه نو بیا به پرې یوه حلاله بله د جزا پرې لازمه شي .

حاجي مفرِد هغه چې د میقات نه یې احرام د حج لپاره تړلی دی قرباني کول ورته متسحب دي لکن واجب نه دي هغه کولی شي بغیر د قربانۍ نه سر وخریي .

حاجي متمتع او قارِن که قرباني نشي کولی نو دهغه لپاره لس روژې نیول دي دری به یې د عرفات نه وړاندې نیولې کیږي پاتې اوه یې ستا خوښه ده چې څه وخت یې هم نیسې خو که د عرفات نه وړاندې دا دری روژې پوره نه کړل شوې نو بیا قرباني کول همدا یوه لاره ده او ضروري ده .

د حاجیانو لپاره د لوی اختر په ورځ څلورم عمل حلق (د سر خریل) یا قصر (د وېښتانو پرې کول) دي

نارینه به خپل سر وخریي او یا به خپل وېښتان پرې کړي او زنانه به یې صرف د وېښتانو نه یو څه وېښته پرې کړي او

دا حلق او قصر او قرباني د ذى الحجې په لسم، يولسم او دولسم باندې کېدلى شي لکن ترڅو چې دا ونشي نو حاجيان به لا په احرام کې پاتې وي او د احرام جامې به يې په غاړه وي .

چې کله د لوی اختر په ورځ د رمی، قربانۍ حلق او يا قصر نه فارغ شوې نو اوس ته د احرام نه خلاص شوې اوس ته ګنډلې جامې آغوستلى شې او عطر لګولى شې خو صرف که بې بې درسره وه د هغې سره جماع لا تر اوسه پورې هم لا نده روا شوې او دا به هغه وخت تاته روا شي چې طواف زيارت هم وکوې نو ددې کارونو څخه وروسته به راشې بيت الله ته .

د لوى اختر په ورځ د حاجيانو لپاره پنځم عمل طواف زيارت:

د احرام ، په عرفات درېدلو په څېر طواف زيارت هم د حج ضروري رکن دى او دا مخکې کول په کار نه دي سنت يې دادي چې د تېرو يادو کړل شويو کارونو څخه وروسته وکول شي لکه رمی، قرباني، حلق .

د لسم ورځ (د لوى اختر ورځ) د طواف زيارت لپاره غوره ورځ ده خو که بيا پاتې شي نو د دولسم تر ماښام پورې هم

اداء کېدلی شي او که ددېنه وروسته شو نو بیا حلاله واجبه ده د تا خیر له امله خو طواف به بیا هم کول ضروري وي او ترڅو پورې چې شوی نه وي جماع نه روا کیږي کله چې طواف زیارت وکول شو اوس د احرام ټول قیدونه له حاجي څخه پورته شول اوس حاجي عام ژوند کولی شي حتی جماع هم کولی شي.

زنانه د خپلې میاشتنۍ بیماري په دوران کې د حج ټول کارونه کولی شي صرف طواف زیارت نشي کولی (ځکه دا په جومات کې کیږي) او دا به دا هغه وخت کوي چې کله د بیماري نه پاکه شوه او ددې تاخیر له امله پدې باندې حلاله نه لازمیږي .

# د طواف نه وروسته د حج لپاره د صفا او مروه په مینځ کې تلل را تلل (سعی)

که چېرته تا په طواف قدوم کې اضطباع (په چپه اوږه باندې څادر اچول او تر ښي تخرګ لاندې ویستل) او رمل ( د پهلوانانو په څېر حرکت کول په دریو اولو شوطونو کې) کې کړي وي او د هغې نه روسته دې سعی هم کړې وي نو بیا یې اوس د بیا کولو ضرورت نشته او که تا چېرته صرف د حج لپاره احرام آغوستی

وو او د طواف قدوم سره دى سعى او يا په طواف كې رمل او اضطباع نه وي كړې نو اوس يې كول ضروري دي هم به په طواف كې رمل او اضطباع وكوې او هم به وروسته د صفا او مروه سعى وكوې طريقه يې تېره شوېده كه دې دا سعى مخكې نه وه كړې نو اوس يې چې وكوې پدې سره ستا د اختر د ورځې كارونه ختم شول اوس منى خواته حركت وكوه او شپه به هلته په منى كې تېره كړې .

## د حج څلرمه ورځ ( د ذى الحجې ١١يولسم )

كه تر اوسه پورې لتا نه قربانى او طواف زيارت پاتې وي اوس يې وكوه او كه دې كړى وي نو اوس د ماسپښين مونځ په جمع باندې په مسجد خيف كې وكوه ته يې په خپله خېمه كې هم كولى شې لكن كوښښ وكوه چې په جماعت سره يې وكوې د مانځه نه وروسته به د دريو جمرو وېشتلو ته روان شې د جمرو د وېشتلو وخت د زوال نه شروع كيږي تر لمر لوېده پورې او كه بيا يې د دولسم په سحر وختي كې د لمر خاته نه وړاندې وكوي نو بيا هم ښه ده او كه ددېنه وروسته شي نو بيا به هم رمى كوي او د تاخير لپاره پرې حلاله واجب ده د رمى د كولو طريقه په پوره ډول سره تېره

شوه .

## د حج پنځمه ورځ (د ذی الحجې دولسم)

که قرباني او حلق او طواف زيارت دې تر اوسه پورې نه وي کړي نو اوس يې وکوه او ددې ورځې خاص کار د دريو واړو جمرو ويشتل دي د زوال نه وروسته او د نن ورځې د رمی نه وروسته ستا خوښه که په منی کې پاتې کيږې د ديارلسم د ورځې د رمی لپاره او که ځې مکې مکرمې ته لکن که چېرته تلل غواړې نو د لمر لوېده نه به وړاندې د منی څخه وزې او که ته دلته پاتې شوې او لمر ولوېدو نو بيا د شپه همدلته ده اوس به نه ځې او سبا به د ديارلسمې ورځې رمی وکوې بيا به ځې

## د منی نه مکې ته روانېدل

اوس د حج پوره کړو مکې ته روان شه او په لاره باندې د الله تعالی شکريه اداء کوه چې تاته يې ددې قدرت درکړو مکې ته په لاره د جنت المعلی سره نېږدې يو ځای دی وادي محصب ورته وايي دلته لږ دمه کول سنت دي او که نور نه وي نو د ماسپښين، مازيګر يا ماښام مانځه لپاره دلته دمه وکوئ لکن اوس د موټرو

او تيزو ترانسپورتي وسائلو له امله دلته څوک دمه نه کوي .

## طواف وداع (د خداى په اماني طواف)

دا طواف په هغه کسانو باندې دى چې د ميقات نه بهر اوسيږي که تا هر ډول حج کړى وي که افراد، تمتع او يا قِران وي ددېنه مخکې تا طواف زيارت کړى دى او کله چې ته د مکې ښار نه روانېږې دا يو مستحب طواف دى اضطباع او رمل پکې نشته

## په مکه مکرمه کې د دعا ځايونه

د مکې مکرمې هره ټوټه مقدسه ده په هرځاى يې برکات وريږي لکن دا لاندې يو څو ځايونه دي چې هلته څوک دعا وکوي قبليږي .

١1. مطاف ( هغه ځاى چې د بيت الله د څلورو اړخونو څخه لګېدلى دى مونځ او طواف پکې کيږي)

٢2. ملتزم ( د ديوال هغه برخه چې د بيت الله د دروازې او د حجر اسود په مينځ کې ده)

3. تر ميزاب الرحمة ( د مکې مکرمې

ناوه) لاندې ځای .

4. د بیت الله د ننه ساحه .

5.د حجر اسود او رکن یمني تر مینځ ساحه .

6. مستجار ( هغه ساحه چې د بیت الله د دروازې او د رکن یمني تر مینځ ده په غربي طرف کې ) .

7.د مقام ابراهیم شا ته .

8. صفا

9.مروه

١10. مسعی ( د صفا او مروه په مینځ کې د تلو راتلو لپاره ځای)

١١11.د صفی او مروه په مینځ کې د میلینو اخضرینو (دوه شنو څلیو) په مینځ کې .

12.د عرفات ټول میدان په خاصه توګه د جبل الرحمة سره نیږدې .

13. په مزدلفه کې .

١٤14. منی .

15 جمرات .

16. په حطیم کې د ننه .

17. کله چې ته بیت الله ته ګورې دا

وخت .

18. غار حراء

19. غار ثور .

20. د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زېږېدنې ځای اوس پدې ځای یوه کتابخانه ده .

## په مکه کې محترم (دورتللو وړ) ځایونه .

١١. بیت خدیجه (د حضرت خدیجه رضی الله عنها کور) چېرته چې د ډېر وخت لپاره رسو الله صلی الله علیه وسلم دلته ژوند کړی دی او د رسو الله صلی الله علیه وسلم ټول اولادونه . حضرت قاسم، زینب، عبد الله، رقیه، فاطمه او ام کلثوم رضی الله تعالی عنهم همدلته پیدا شوي دي او د هجرت نه وړاندې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم همدلته اوسېدلو.

٢٢. د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زېږېدنې ځای اوس پدې ځای یوه کتابخانه ده .

3. دحضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه کور .

4. دار الارقم د هجرت نه وړاندې د مسلمانانو لوی مرکز اسلام د اول ډېرې

مشهورې واقعې د حضرت عمر رضی الله عنه اسلام د حضرت حمزره رضی الله عنه اسلام او داسې نور دلته تېر شوي دي او دا د حضرت ارقم مخزمي کور وو .

5. مسجد جن دا هغه جومات دی چېرته چې رسول الله صلی الله وسلم د پیریانو څخه بیعت اخستی وو ددې امله ورته مسجد بیعت هم وایي دا مسجد په سوق معلی نومي ځای کې دی .

6. مسجد شجره دا جومات د مسجد جن نه مخامخ دی .

7.مسجد بلال دا جومات د ابو قبیس غونډی په سر دی په ځینو روایاتو کې راغلي دي چې د رسو ل ا لله صلی الله وسلم د شق القمر معجزه دلته ښکاره شوه .

8. مسجد مجتبی داجومات د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زېږېدنې د ځای سره نږدې دی .

9. مسجد طوی دا هغه جومات دی چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم عمره کوله په دې ځای کې دېره وو بیا په هغه ځای باندې جومات جوړ شو .

10. مسجد عائشه دا د تنعیم سره دی د مکې خلک د عمرې او حج لپاره احرام ددې ځای نه تړي .

١١11. مسجد اجياد دا په جياد نومي ځای کې واقع دی .

12. مسجد خديجه

13. مسجد خيف چې په منی کې دی.

١٤14. مسجد نصب دا هم په منی کې مسجد خيف ته څېرمه دی .

15. جبل ابو قبيس مخکې يې ذکر تېر شو د حرم غربي طرف ته يوه تپه ده ويل کېږي چې د شق القمر معجزه دلته ښکاره شوې وه.

16. جبل النور دا يو غر دی چې دری ميله له حرم نه لرې دی او ددې په سر کې غار حراء دی .

17. جبل الثور هغه غر دی چې په سر کې يې تاريخي غار ثور دی .

18. جنت المعلی د مکې مکرمې تاريخي هديره ده په دوه برخو وېشل شوې ده په مينځ کې يې سره کرښه تېره ده د ډېرو صحابه وو قبرونه دلته واقع دي او تر اوسه پورې نه دي ښورول شوي .

زمزم

هغه تاريخي زوړ کوهی دی چې مخکې د بيت الله سره نېږدې ورته لاره وه او په اوبو کې يې شفا ده او دا اوبه په وچه

زمکه کې حضرت اسمعيل عليه السلام او
د هغه مور حضرت هاجر ته الله تعالى را
پيدا کړې وې دا اوبه اوس هم يوه
ژوندۍ معجزه ده چې په کلونو کلونو
ترېنه په مليونونو مليونونو خلکو و
څښلې او څښي يې بيا هم تر اوسه پورې
دا اوبه نه کمې شوې او نه بل مشکل
پکې پيدا شو اوبه يې هم انسان مړوي
او هم انسان خړوب کوي يعني د اوبو
په ځای هم او د ډوډۍ په ځای هم کار
کوي څښل يې مستحب دي اودس او غسل
پرې کول د برکت نه ډک دي خو اندام
مخصوصه پرې وينځل (استنجا کول)
وربانديې مکروه او د ځينو فقهاوو له
نظره حرام دي . دا له ځان سره وړل
مستحب کار دی او ددې اوبو تجارت کول
اخستل او خرڅول هم روا دي خو چې دا
خرڅول او خستل په جومات کې يعني په
مسجد حرام يا مسجد نبوي کې نه وي .

# په مدینه منوره کې حاضري ورکول



د الله تعالى ډېره شکريه چې تاته يې د حج نيکبختي در په برخه کړه اوس تلل دي د رسو ل الله صلى الله عليه وسلم خاتم النبيين روضې مبارکې ته او هلته حاضري ورکول دي دا هرڅه دده له مخه پيدا شوي دي ، دا دده برکت دی چې ته د دنيا او آخرت په نېکبختي باندې بختور شوې مدينې منورې ته حاضري ورکول ډېره نېکبختي ده او لويه ګټه ده زمونږ د ټولو ديني کتابونو له مخې مدينه منوره غوره خاوره ده د ځينې

فقهاوو له نظره د مدینې منورې سفر واجب دی او وروسته ددې چې څوک رسول الله صلی الله علیه وسلم و پېژني او دهغه په صفاتو خبر شي او دهغه په مرتبه باندې قائل شي نو دهغه خواته د ورتلو دتشویق ضرورت هم نشته هر مسلمان به له زړه غواړي چې هلته لاړ شي خو بیا هم زه ستاسې په خدمت کې یو څو احادیث ړدم چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زیارت کولو ترغیب ورکوي .

١:۔ مَنْ زَارَ قَبْرِیْ وَجَبَتْ لَہٗ شِفَاعَتِیْ

چا چې زما زیارت وکولو زما شفاعت ورته واجب شو.

٢:۔ مَنْ جَاءَ نِیْ زَائِراً لَا یَکُوْنُ بِعَمَلِہٖ حَاجَۃٌ اِلَّا زِیَارَتِیْ کَانَ حَقًّا عَلَیَّ اَنْ اَکُوْنَ شَفِیْعًا لَہٗ یَوْمَ الْقِیٰمَۃِ[ط][١]

څوک چې زما زیارت ته راشي او مدینې ته په راتلو کې یې زما د زیارت نه بغیر بل څه کار نه وي په ما باندې حق ده چې زه به دقیامت په ورځ دده شفاعت کوم .

٣:۔ مَنْ حَجَّ وَ زَارَ قَبْرِیْ بَعْدَ مَوتِیْ کَمَنْ زَارَنِیْ فِیْ حَیَاتِیْ۔

چا چې حج وکولو او زما د وفات نه وروسته یې زما زیارت وکولو لکه چې په ژوند کې یې زما ملاقات کړی وي.

۴:۔ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنْ زَارَبِیْ مُتَعَمِّدًا کَانَ فِیْ جِدَارِیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ وَ مَنْ سَکَنَ فِی الْمَدِیْنَةِ کُنْتُ لَہٗ شَهِیْدًا وَّ شَفِیْعًا یَوْمَ الْقِیٰمَةِ

له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل شوي هغه فرمایل : چا چې زما زیارت وکولو هغه به په جنت کې زما ګاونډی وي او څوک چې په مدینه کې (زما په مینه) و اوسېدل زه به په قیامت کې د هغه شفاعت کوم .

۵:۔ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ حَجَّ وَ لَمْ یَزُرْنِیْ فَقَدْ جَفَانِیْ۔

چا چې حج وکولو او زما زیارت یې ونه کولو زما سره یې جفا وکوله .

یادښت :

که چېرته ته فرضي حج ته روان وې نو اول حج وکوه بیا د روضه اقدس زیارت وکوه او که چېرته نفلي حج کوې نو بیا که درته اسانه وي اول مدینې ته لاړ شه او که مدینه ستا په لاره کې وه نو اول د روضه اقدس زیارت وکوه بیا به مکې ته حج ته لاړ شې .

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرقد مبارک د زیارت طریقه :

کله دې چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زیارت اقدس اراده وکوله نو نیت د سفر وکوه او چې روان شې نو په لاره

باندې به درود او سلام په رسول الله صلی الله وسلم باندې زيات وايې او چې کله دې مدينه منوره وليده نو دا دعا به ووايې:

**اَللّٰهُمَّ هٰذَا حَرَمُ نَبِيُّکَ فَاجْعَلْهُ وَ قَايَةً لِّیْ مِنَ النَّارِ ط وَ اَمَانًا مِّنَ الْعَذَابِ وَ سُوْءِ الْحِسَابِ ط**

ژباړه: ای الله دا ستا د نبي حرم دی زما لپاره يې د اور نه پرده کړه او زما لپاره يې له اور او سخت حساب نه د امان وسيله کړه

که مدينې ته د ننوتلو په وخت کې غسل وکوې نو ښه خبره ده او يوازې اودس هم کافي دی ځان به ښه جوړ کړې او خپلې تر ټولو نه ښې جامې به واغوندې او که کېدی شي چې د مدينې ساحې ته په پښو ور ننوزې نو ښه خبره ده او دا دعا به دې په خوله وي:

**رَبِّ اَدْخِلْنِیْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّ اَخْرِجْنِیْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّ اجْعَلْ لِّیْ مِنْ لَّدُنْکَ سُلْطَانًا نَصِيْرًا o اَللّٰهُمَّ اِفْتَحْ لِیْ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ وَارْزُقْنِیْ مِنْ زِيَارَةِ رَسُوْلِکَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَا رَزَقْتَ اَوْلِيَاءَکَ وَ اَهْلَ طَاعَتِکَ وَاغْفِرْلِیْ وَارْحَمْنِیْ يَا خَيْرَ مَسْئُوْلٍ وَ اَغْنِنِیْ بِحَلَالِکَ عَنْ حَرَامِکَ وَ بِطَاعَتِکَ عَنْ مَّعْصِيَتِکَ وَ بِفَضْلِکَ عَمَّنْ سِوَاکَ وَ نَوِّرْ قَلْبِیْ وَ قَبْرِیْ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ الْخَيْرَ کُلَّہ، عَاجِلَہ، وَ اٰجِلَہ، مَا عَلِمْتُ مِنْهُ وَ مَا لَمْ اَعْلَمْ وَ اَعُوْذُبِکَ مِنَ الشَّرِّ کُلِّہٖ مَا عَمِلَتْ مِنْهُ وَ مَا لَمْ اَعْلَمْ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ**

اَوْ سَعَ رِزْقِکَ عَلَیَّ عِنْدَ کَبَرِ سِنِّیْ وَانْقِطَاعِ عُمْرِیْ وَاجْعَلْ خَیْرَ عُمُرِیْ اٰخِرَہ٬ وَ خَیْرَ عَمَلِیْ خَوَاتِیْمَہ٬ وَ خَیْرَ اَیَّامِیْ یَوْمًا اَلْقَاکَ فِیْہ

ژباړه : ای الله ما د رښتون ولي د دروازي نه ننباسه او ما د رښتون ولي له دروازې نه وباسه او له خپله لوري مې مرسته وکړه او غلبه راکړه، زما لپاره د رحمت دروازې پرانيزه او د رسول الله صلى الله له زيارت نه مې هغه څه نصيب کړه چې تا نورو خپلو اولياوو ته او د اطاعت خاوندانو ته ور نصيب کړي وو ماته ښنه وکوه په ما باندې رحم وکوه اى هغه ذاته چې لتا څخه سوال کيږي ما په حلالو باندې له حرامو نه بې پروا کړه ما په اطاعت باندې ستا له ګناهونو څنې بې پروا کړه او په خپل فضل مې د ټول مخلوق نه بې پرواه کړه زما زړه او زما قبر رڼا کړه زه لتا څخه د خير سوال کوم که زر وي او که په څنډ سره وي هغه چې زه پرې خبر يم او يا پرې خبر نه يم او د ټول شر نه په تا باندې پناه غواړم هغه چې زه ورباندې پوهېږم او يا ورباندې نه پوهېږم يا الله په ما باندې خپله روزي هغه وخت فراخه کړې چې زه زوړ شم او عمر مې لنډ شي او زما ښه عمر زما آخر عمر کړې زما د

عمل آخره خاتمه ښه کړې او زما غوره ورځ هغه ورځ کړې چې زه په هغه ورځ لتا سره مخامخ کېږم .
او چې کله مسجد نبوي ته ننوزې نو د باب جبريل نه به ننوزې او ښى پښه به په ننوتلو کې وړاندې کړې او لاندې دعا به ولولې :
**اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِىْ ذُنُوْبِىْ وَافْتَحْ لِىْ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِىْ الْيَوْمَ مِنْ اَوْجَہِ مِنْ تَوَجَّہَ اِلَيْکَ وَ اَقْرَبِ مَنْ تَقَرَّبَ اِلَيْکَ وَ اَنْجَحِ مَنْ دَعَاکَ وَابْتَغٰى مَرضَاتِکَ**

ژباړه : اى الله زما ګناهونه راته معاف کړه ، زما لپاره دخپل رحمت دروازې خلاصې کړه ،نن ما په ټولو هغه کسانو کې غوره کس کړه چې تاته يې مخه کړې وي او په ټولو هغه کسانو کې مې تاته در نيږدې کړه چې تاته يې ځان نيږدې کېدل غوښتي وي او په ټولو هغه کسانو کې مې کامياب کړه چې ستا نه يې دعا غوښتې وي او ستا رضا يې غوښتې وي .

کله چې مسجد ته ننوزې نو که د مانځه لپاره مکروه وخت نه وو نو دوه رکعته تحية المسجد به اداء کړې که په روضة الجنة کې درته موقع وه نو ښه خبره ده په اول رکعت کې د الحمد لله نه وروسته قل يا ايهالکفرن او په دوهم کې قل هو الله احد ووايه .

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارک ممبر او د مرقد اقدس په مینځ کې دې ځای ته روضة الجنة (د جنت باغیچه) وایي او دا هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو حدیث له مخې چې هغه فرمایل :

مَا بَیْنَ بَیْتِیْ وَ مِنْبَرِیْ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّیَاضِ الْجَنَّةِ [1]

ژباړه : زما د منبر او کوټې تر مینځ د جنت د باغیچو نه یوه باغیچه ده .

او که چېرته د جمع مونځ تیار وو نو بیا به په جمع وروسره و دریږې بیا تحیة المسجد نشته لکه چې د عام جومات هم همدا حکم دی .

اوس به ته د رسو ل الله صلی الله مرقد مبارک ته ځې دری څلور فیټه لرې به ترینه دریږې او هغه ته به سلام کوې او په لاندې الفاظو به سلام ورته کوې .

اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا رَسُوْلَ اللّٰہِ اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا خَیْرَ خَلْقِ اللّٰہِ اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا خَیْرَةَ اللّٰہِ اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا حَبِیْبَ اللّٰہِ اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ یَا سَیِّدَ وُلْدِآدَمَ اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ اَیُّهَا النَّبِیُّ وَ رَحْمَةُ اللّٰہِ وَ بَرَکَاتُہٗ یَا رَسُوْلَ اللّٰہِ اِنِّیْ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ وَ حْدَہٗ لَا شَرِیْکَ لَہٗ وَ اَشْهَدُ اَنَّکَ عَبْدُہٗ وَ رَسُوْلُہٗ اَشْهَدُ اَنَّکَ بَلَّغْتَ الرِّسَالَةَ وَ اَدَیْتَ الْاَمَانَةَ وَ نَصَحْتَ الْاُمَّةَ وَ کَشَفْتَ الْغُمَّةَ فَجَزَاکَ اللّٰہُ خَیْرًا جَزَاکَ اللّٰہُ عَنَّا اَفْضَلَ مَا جَازٰی نَبِیًّا عَنْ

**أُمَّتِہٖ اَللّٰہُمَّ اَعْطِ سَيِّدَنَا عَبْدَکَ وَ رَسُوْلَکَ مُحَمَّدً نِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَ الدَّرَجَةَ الرَّفِيْعَةَ وَابْعَثْہُ مَقَامً مَّحْمُوْدَ نِ الَّذِیْ وَ عَدْتَّہٗ اِنَّکَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ وَ اَنْزِلْہُ الْمَنْزِلَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَکَ اِنَّکَ سُبْحَانَکَ ذُوْفَضْلِ الْعَظِيْمِ**

ژباړه : سلام دې وي پر تا باندې ای د الله رسوله ، پر تا دې سلام وي ای د الله په مخلوق کې غوره، سلام دې وي پر تا باندې ای د الله غوره کړل شویه ، سلام د وي پر تا باندې ای د الله دوسته، سلام دې وي پر تا باندې ای د آدم علیه السلام د اولادې سر داره ، سلام دې وي پر تا باندې ای نبي او د الله رحمت دې وي پر تا باندې او برکتونه د الله د وي پر تا باندې زه ددې ګواهي ورکوم چې الله تعالی یوازې دی او شریک نه لري او ددې ګواهي ورکوم چې ته د هغه بنده او رسول یې زه ددې ګواهي ورکوم چې تا د خپل رسالت تبلیغ وکولو، ا مانت دې پوره کړو ، امت ته دې نصحیت وکړو ، تشویش دې پورته کړو، الله تعالی د تاته ښه اجر درکړي په هغه اجرونو کې چې پیغمبرانو ته یې ورکوي غوره اجر ، ا ی الله ورکړوه زمونږ سردار ستا نبي او رسول حضرت محمد بهتري او لوړه درجه او وئې رسوه مقام محمود ته هغه چې تا ورسره وعده کړېده بېشکه ته د خپلو وعدو څخه خلاف نه کوې او په هغه ځای

کې ځای ورکړه چې تا ته نېږدې وي بیشکه تا لره پاکي ده ته د لوی فضل مالک یې .

د رسو ل الله صلی الله علیه وسلم د شفاعت لپاره به لاندې دعا ولولې .

**يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَسْئَلُکَ الشَّفَاعَةَ وَ اَتَوَسَّلُ بِکَ اِلَی اللّٰهِ فِیْ اَنْ اَمُوتَ مُسْلِمًا عَلٰی مِلَّتِکَ وَ سُنَّتِکَ.**

ژباړه : ای د الله رسوله زه ستا د شفاعت سوال کوم او تا الله ته وسیله ګرځوم ددې لپاره چې زه مسلمان مړ شم او ستا په ملت او ستا په سنت کې مړ شم .

که چا درته ویلي وو چې زما سلام رسول الله ته ورسوه نو په لاندې الفاظو یې ورته وایه :

السلام علیک یا رسول الله من فلان ابن فلان یتشفع بک الی ربک .

او که چېرته ډېرو خلکو درته سلام درکړی وو نو بیا ووایه :

السلام علیک یا رسول الله من جمیع من اوصاني .

وروسته ددې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د خپل سلام وړاندې کړو اوس لږ مخکې شه د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه قبر ته ودرېږه او هغه ته په لاندې الفاظو سره سلام وکوه :

اَلسَّلَامُ عَلَيْکَ يَا خَلِيْفَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَ ثَانِيَہٖ فِی الْغَارِ وَ رَفِيْقَہٖ فِی الْاَسْفَارِ وَ اَمِيْنَہٖ عَلَی الْاَسْرَارِ اَبَا بَکْرَان الصِّدِّيْقِ جَزَاکَ اللّٰهُ عَنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ خَيْرًا۔

ژباړه: پر تا د سلام وي ای د رسول الله صلی الله عليه وسلم خليفه او هغه شخصه چې ته ورسره په غار کې دوهم ملګری وې او دده سره په سفرونو کې ملګری وې او په پټو خبرو کې دده امين وې ابو بکر صديقه الله تعالی د تاته د محمد صلی الله عليه وسلم د امت له لوري ښه اجر درکړي .

يو فوټ نور هم ښي طرف ته لاړ شه ته اوس د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه قبر ته ولاړ يې او هغه ته پدې الفاظو سره سلام وکوه .

اَلسَّلَامُ عَلَيْکَ يَا اَمِيْرَ الْمُوْمِنِيْنَ عُمَرَ الْفَارُوْقَ الَّذِیْ اَعَزَّ اللّٰهُ بِہٖ السَّلَامَ۔ اِمَامَ الْمُسْلِمِيْنَ مَرْضِيًّا حَيًّا وَّ مَيِّتًا جَزَاکَ اللّٰهُ عَنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ خَيْرًا۔

ژباړه: پر تا باندې دې سلام وي ای د مسلمانانو اميره حضرت عمر فاروق هغه چې ستا په واسطه الله تعالی اسلام ته عزت ورکړو د مسلمانانو امام وې ته د قدر وړ يې هم ستا په ژوند او هم ستا له مرګ نه وروسته الله تعالی د دمحمد صلی الله عليه وسلم د امت نه تاته جزاء خير در کړي .

دوی ته د سلام اچولو په وخت کې ته

کولی شې د پورتنیو الفاظو سره نور هم اضافه کړې یا یې ترې کم کړې او یا یې بدل کړې خو ټول الفاظ به د عاجزي او احترام الفاظ وي او که چا ددوی لپاره سلام درکړی وي نو ورته ویلی یې شې .

تر اوسه پورې تا دواړو خلیفه ګانو ته بېل بېل سلام وویلو اوس دواړو ته په شریکه سلام وکوه او لاندې الفاظ ورته ووایه :

اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ضَجِيْعَىْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ رَفِيْقَيْهِ وَ وَزِيْرَيْهِ جَزَاكُمَا اللّٰهُ اَحْسَنَ الْجَزَاءِ جِئْنَا كَمَا نَتَوَسَّلُ بِكُمَا اِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَشْفَعَ لَنَا وَ يَدْعُوْلَنَا رَبَّنَا اَنْ يُحْيِيْنَا عَلٰى مِلَّتِهِ وَ سُنَّتِهِ وَ يَحْشُرَنَا فِیْ زُمْرَتِهِ وَ جَمِيْعَ الْمُسْلِمِيْنَ

ژباړه : پر تاسو باندې دې سلام وي ای د رسول الله صلی الله علیه وسلم په څنګ کې دواړو ارام کونکو او دهغه ملګرو او د هغه وزیرانو الله تعالی دې تاسې ته اجر درکړي مونږ ددې لپاره راغلي یو چې تاسې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وسیله کړو چې هغه زمونږ شفاعت وکوي او د الله تعالی نه زمونږ لپاره وغواړي چې مونږ د همده په ملت او سنت باندې مړه کړي او د قیامت په ورځ مو دده په ډله کې د ټولو مسلمانانو سره را پورته کړي .

اوس د سلام نه وروسته بېرته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرقد مقدس خواته راشه او په لاندې الفاظو سره د ځان لپاره دعا وغواړه .

**يَا رَسُوْلَ اللهِ قَدْ قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ وَ لَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ ثُمَّ جَاؤُكَ فَاسْتَغْفَرُوْا اللهَ وَاسْتَغْفَرَلَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوْا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا فَجِئْنَاكَ ظَالِمِيْنَ اَنْفُسَنَا مُسْتَغْفِرِيْنَ لِذُنُوْبِنَا فَاشْفَعْ لَنَا اِلٰى رَبِّنَا اَنْ يُّمِيْتَنَا عَلٰى سُنَّتِكَ وَ يَحْشُرَنَا فِىْ زُمْرَتِكَ.**

ژباړه : ای د الله رسوله الله تعالی فرمايلي دي که چېرته دوی په خپلو ځانونو د ګناهونو په کولو سره ظلم وکړو بیا تاته راغلل او دوی د الله تعالی نه بښنه وغوښته او پیغمبر (تا) هم ددوی لپاره بښنه وغوښته نو الله تعالی به پیدا کړي توبه قبلونکی او رحم کونکی اوس مونږ په داسې حالت کې تاته راغلي يو چې په ځانونو مو ظلمونه کړي دي او د ګناهونو بښنه غواړو، زمونږ سفارش وکوه الله ته چې مونږ ستا په سنت باندې مړه کړي او د قیامت په ورځ مو هم ستا په ډله کې جمع کړي .

په مسجد نبوي کې عبادت او دهغه ثواب :

د بخاري شريف او مسلم شريف له مخې په مدينه منوره کې يو مونځ د زرو مونځونو څخه زيات ثواب لري .

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةٌ فِیْ مَسْجِدِیْ هٰذَا خَیْرٌ مِنْ اَلْفِ صَلٰوةٍ فِیْ مَا سِوَاهُ اِلَّا الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ط ١

ژباړه : د حضرت ابي هريره رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی هغه فرمايل چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي زما په دې جوماتکې مونځ د د نورو ځايونو څخه غوره دی بغير د مسجد حرام نه .

د حضرت انس بن مالک روايت دی چې څوک زما پدې جومات کې مسلسل څلوېښت مونځونه وکوي هغه له اور نه نجات پيدا کړو .

# د جنت البقيع زيارت



وروسته ددې چې تا د رسول الله صلی الله عليه وسلم او دهغه د دوو مبارکو صحابه وو زيارت وکړو دددې زيارت نه وروسته ته بايد د جنت البقيع زيارت هم وکوې جنت البقيع د مسلمانانو پخوانۍ هديره ده ډير زيات صحابه.تابعين او تبع تابعين او د رسول الله صلی الله عليه وسلم ازواج مطهرات همدلته دفن شوې دي

# اُحد



د مدینې منورې د حرم نه درې میله لرې د احد د شهیدانو ځای دی او د احد غر ورسره دی د کوم په اړه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي احد یو داسې غر دی چې زمونږ سره مینه کوي او مونږ هم ورسره مینه کوو په بل حدیث کې راغلي دي چې احد د جنت برخه ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت کې دوهم لوی جنګ همدلته شوی وو (غزوه

احد) د احد د غره او دهغه سره شاو خواته تلل د سه شنبې په ورځ د سحر مانځه نه وروسته مستحب دي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تره حضرت حمزه رضى الله عنه مرقد مبارک هم همدلته دى د حضرت عبدالله بن جحش ، حضرت مصعب ابن عمير په شمول اويا شهيدان صحابه همدلته دفن دي .

## په مدینه منوره او دهغې په چاپېریال کې جوماتونه

## مسجد قباء



لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى مِنْ اَوَّلِ يَوْمٍ اَحَقُّ اَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ ؕ فِيْهِ رِجَالٌ يُحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ ۝

د مدینې منورې نه په جنوب غربي سمت کې پروت دی په مربع
شکل باندې جوړ شوی جومات دی د مسجد د پخوانیو آثارو څخه پکې اوس یو کانی پاتی دی چې د جومات تاریخ وربانديې لیکلی دی او په کوفي خط لیکل شوی دی په ٤٣٥ هجري کال کې ددې جومات په تعمیر او بادي کې رسول الله

صلی الله علیه وسلم پخپله شرکت کړی دی او دوهم ځلي تعمیر یې حضرت عثمان رضی الله عنه کړی دی او هغه فراخه هم کړو بیا عمرو ابن عبدالعزیز چې په مدینه باندې والي وو هغه بیا ترمیم کړو او مناره یې ورته جوړه کړه او په ٥٥٥ هجري کال کې جمال الدین اصفهاني بیا له سر نه نوی کړو او په ٦٢١ – ٦٣٣ – ٨٤٠ – ٨٨١ کلونو کې بیا بیا نوی کړل شو د آخري ځل لپاره په ١٢٤٥ کې د عثماني خلافت په دوران کې تعمیر کړل شو د سلطان محمد الثاني او سلطان عبدالمجید په دور کې او بیا د آخري ځل تعمیر لپاره ملک فهد د پنجشنبې په ورځ په آتم د صفر په کال ١٤٠٥ کې د نوي د تعمیر او ابادي د تهداب تیږه کېښوده او د دوو کلونو کار نه وروسته په ٢٨/صفر /١٤٠٧ باندې دا فراخ جومات جوړ شو چې کوم ته اوس وینې اود زرګونو مونځ کونکو ځای لري .

د ښځینه او نارینه وو لپاره د پوره جدایي سره د مونځ کونکو ځای لري څلور منارې او ٥٦ ګمبذې پکې جوړې کړل شوي دي اوه لویې دروازې لري او ١٢ فرعې او واړه ورونه پکې دي ٦٤ تشنابونه پکې د سړیو لپاره او ٣٤ پکې د زنانه وو لپاره جوړ کړل شوي دي په

خوا کې ورسره د موذنینو او امامانو لپاره د هستوګنځای او یوه کتابخانه جوړه کړل شوې ده

## مسجد ذی الحلیفة



دېته مسجد شجره هم وایي دلته یوه ونه وه رسول الله صلی الله علیه وسلم به ترې لاندې کېناستلو او ذوالحلیفه ددې ځای نوم دی چې په کوم ځای کې دا جومات جوړ دی او دېته مسجد میقات هم وایي د مدینې منورې له لوري نه چې څوک مکې مکرمې ته ځي احرام ددې ځای نه آغوندي یعني چې دا جمات د اهل مدینه لپاره میقات دی مبارک ځای دی او ددې جومات هم وروستنی او نوی تعمیر د ډېرې زیاتې فراخي سره د ملک فهد په

زمانه کې شوی دی کوم یې چې اوس موجوده شکل دی .

## مسجد القبلتین



جومات د هجرت په دوهم کال باندې جوړ کړل شوی دی د حضرت بنو سواد بني غنم بن کعب په لاس او په خپل وخت کې په ښه غوره او قیمتي ډول سره جوړل کړل شو او ښه خواري ورسره شوې وه د هجرت په دوهم کال د شعبان په پنځلسم رسول الله صلی الله علیه وسلم د ام بشر چې د بني سلم د قبیلې نه وه د هغوی ځای ته ورغلی وو او د ماسپښین مانځه ته دې جومات ته راغلو چې په دې وخت کې قبله بیت المقدس وو په همدې ځای کې یې دوه رکعته بیت المقدس ته کړي وو چې

هغه آیت نازل شو په کوم کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته امر شوی وو چې نور د په مانځه کې مخ د بیت المقدس لوري ته نه بلکه د مکې مکرمې په لوري کوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم په مانځه کې مخ مکې مکرمې ته راوړولو او دهغې ورځې نه دې جومات ته مسجد قبلتین ( ددوو قبلو جومات) ویل کیږي .

په کال ۸۷ هجري کې دا جومات حضرت عمر و ابن عبد العزیز جوړ کړو او نوی یې کړو په هغه پروګرام کې چه هغه ټول هغه جوماتونه نوي کړل په کومو کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ کړی وو بیا په هماغه حالت باندې تر ۸ ډېره وخته پورې پاتې شو او بیا شاهین جمالي په خپل وخت کې نوی کړو د سلطان عثماني په زمانه کې بیا نوی شو چې د بهر خوانه ورته قیمتي کاڼي ولګېدل او ښائسته کړل شو بیا دا جومات د ټولو تاریخي جوماتونو سره په یو ځای د ملک فهد په کوښښ سره فراخ او نوی جوړ شو کوم چې تر اوسه پورې په هماغه شکل کې دی.

## مسجد جمعه



کله چې د هجرت په لمړي کال د ربيع الاول په دولسمه باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته ورسېدو تر څلورو ورځو پورې په قباء کې پاتې شو بيا د ربيع الاول په ١٦ تاريخ د جُمې د ورځې په سحر ددې ځای نه روان شو د مدينې منورې په لوري په لاره کې د جُمعې د مانځه وخت شو او په وادي رانوناء کې يې د جُمعې مونځ اداء کړو بيا دا ځای په نښه کړل او شو کانې پرې را ټول شول او مسجد جمعه نوم ورته کېښودل شو بيا بيا به دا کانې

پورته کېدل او جمات به ترې جوړېدلو او د وخت تېرېدلو سره به هغه بيا غورځېدلو تردې چې په وروستيو وختونو کې يې ملک فهد په جوړېدلو او تازه کولو او په فراخه کولو باندې حکم وکړو او دا جومات يې جوړ کړو چې کوم اوس تاته ښکاره کيږي .

## مسجد العنبرية



دا جومات د مدينې منورې د حرم نه غرب طرف ته واقع دی شاو خواته ته ترېنه تاو شوي باغ يوه قدرتي ښکلا ورکړېده او په عهد عثماني کې چې ددې تعمير ځنګه شوی دی هغه ډېر عجيب دی او په کمال جوړ شوی دی په هغه وخت کې چې ملک فهد د ټولو تاريخي جوماتونو

ترمیم کولو نو ددې جومات یې هم ضروري ترمیم وکولو او فرش یې کړو او لکه د نورو جوماتونو په څېر اصلي آبادي د جومات یې ورانه نه کړه .

## مسجد مصلی (مسجد غمامه)



دا جومات به رسول الله صلی الله علیه وسلم د عیدینو د مانځه لپاره استعمالولو او دېته مسجد غمامه هم وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم به د استسقاء مونځونه هم دلته کول.

## مسجد سُقيا



کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بدر غزا ته روان وو د بیر سقیا په خوا کې یې مونځ کړی وو په هغه ځای باندې جومات جوړ شوی دی .

## مسجد احزاب / فتح



د غزوه احزاب په وخت کې رسول الله صلى الله عليه وسلم درى ورځې پدې ځاى باندې مونځ اداء کړى دى .

## مسجد ابي بكر



دا جومات د مسجد غمامه نه جنوب خواته واقع دى ويل کيږي چې حضرت ابوبکر الصديق رضى الله عنه دلته مونځونه کړي دي او په خاصه توګه د عيد مونځ يې

دلته کړی دی نو ځکه دا جومات دده په مبارک نوم شو یا د خلافت په وخت کې او یا د هغه نه وړاندې .

## مسجد علی



دا هغه جومات دی چې ویل کیږي چې د حضرت عثمان رضی الله عنه د کور د محاصرې په وخت کې دلته حضرت علی رضی الله عنه مونځ کړی وو خو دده په نوم باندې د هغه وخت نه نومول شوی دی چې ده مبارک دلته د اختر مونځ کړی وو .

## مسجد ذباب

دیته مسجد رایه هم وایي او نوم یې د هغه غره نه دی چې دا جومات یې په سر

جوړ دی دې وړوکې غره ته رایه هم وایي او ذباب هم ورته وایي او احد ته په لاره باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم دلته خیمه درولې وه او مونځ یې کړی وو .

## مسجد بني ظفر / مسجد بغل

دا جومات د جنت البقیع نه غرب طرف ته واقع دی دلته یو کانړی دی چې تر اوسه پورې پرې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قچرې د پښې نښه ښکاره کیږي او بغل په عربي کې قچر ته وایي.

## مسجد بني حرام



دا جومات مسجد فتح ته په تلو کې د جبل صلیه په ښي طرف کې واقع دی دلته سوری وو چې د غزوه خندق په وخت کې به رسول الله صلی الله علیه وسلم دلته د شپې آرام فرمایلو .

## مسجد اجابه

دا جومات د جنة البقيع نه شمال لوري ته دی کله چې رسول ﷲ صلی ﷲ علیه وسلم ددې ځای په کتلو را وتلی وو نو دلته یې مونځ کړی وو .

## مسجد اُبی

دا جومات د جنة البقیع سره نیږدې دی دلته د حضرت ابی ابن کعب رضی ﷲ تعالی عنه کور وو او دلته به یې مونځ کولو .

ددېنه یاد کړلو شویو نه بغیر نور هم دلته تاریخي ځایونه او مسجدونه دي ښه خبره ده که زیارت یې وشي او په جوماتونو کې دوه دوه رکعته مونځ وشي او په دې ټولو کې زیاته توجه مسجد قباء ته ورکړل شي رسول ﷲ صلی ﷲ علیه وسلم به په هفته کې یو ځل ورتلو کله په پښو او کله په سپرلۍ باندې.

## مسجد ابي ذر

دې جومات ته مسجد السجده هم وایي په خوا کې یې یو مشهور باغ دی چې نجدي ورته وایي او د حرم نه د میدان هوایي په لوري په غزېدلي سرک باندې واقع دی او دېته مسجد سجده ځکه وایي چې رسول ﷲ صلی ﷲ علیه وسلم دلته دوه

رکعته مونځ اداء کړو او سجده یې ډېره اوږده کړه او چې کله د مانځه نه فارغ شو نو ویې فرمایل چې حضرت جبرائیل علیه السلام ماته خبر راکړو چې څوک په ما باندې درود ووایي الله تعالی په هغه باندې درود وایي .

# په مدینه منوره او شاوخوا کې تاریخي کوهیان.

په مدینه منوره کې داسې کوهیان زیات دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ترې اوبه څښلي وي او یا په بله وسیله د اسلامي تاریخ سره تړاول لري یو څو یې په لاندې ډول دي .

## بير عريس

دا كوهى مسجد قباء ته نږدې دى ددې اوبه ډېرې خوږې او پاكې دي يو ځل حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل نږدې ملګري حضرت ابوبكر صديق رضى الله عنه ددې په غاړه ناست وو.

## بير روما

دا كوهى په وادي عتيق كې دى د مسجد قبلتين نه غرب لوري ته ددې اوبه ډېرې زياتې خوږې او پاكې دي ددې اوبو ته به د مسلمانانو ډېر زړه كېدو حضرت عثمان رضى الله عنه د حضرت پيغمبر عليه السلام په غوښتنه سره واخيست په شل زره درهمه (دا ډېره غټه پيسه وه) دهغې د يهودي مالک نه او ټولو مسلمانانو ته ئي وقف كړو .

## بير غرس

د مسجد قباء څخه نيم ميل لرې د غرب خواته واقع دى .

## بير بوسه

د جنة البقيع سره نږدې واقع دى په رواياتو كې دي چې يو ځل حضرت محمد صلى ا لله عليه وسلم ددې په اوبو باندې خپل لاسونه وينځلي وو .

## بیر حیاة

دا کوهی د حضرت طلحه رضی الله عنه وو چې کله دا آیت نازل شو "لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ" یعني تاسې تر هغه وخته پورې پوره نیکۍ ته نشئ رسېدلی تر څو هغه څه په خیرات کې ورنه کړئ کوم چې تاسې ته ګران وي.

نو حضرت طلحه رضی الله عنه دا کوهی مسلمانو ته او خپلوانو ته وقف کړو.

## بیر حن

د مسجد قباء مشرق طرف ته واقع دی په یو روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې کوهي د اوبو نه اودس کړی وي.

## د حج له سفر نه بېرته کور ته را ګرځېدل

کله چې تا اراده وکوله چې بېرته کور ته را ستون شې په مسجد نبوي کې به دوه رکعته مونځ وکوې او په رسو ل الله صلی الله علیه وسلم باندې به درود ووایې او د الله تعالی نه به د حج د قبلولو، د دنیا او آخرت د سعادت، د بېرته په خیر سره کور ته د رسولو دعاګانې

وغواړې او په آخر کې به لاندې دعا ولولې .

اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ هٰذَا اٰخِرَ الْعَهْدِ بِنَبِيِّكَ وَ مَسْجِدِهٖ وَ حَرَمِهٖ وَ يَسِّرْلِیَ لْعَوْدَ اِلَيْهِ وَالْعُكُوْفَ لَدَيْهِ وَارْزُقْنِیْ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِی الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَ رُدُّنَا اِلٰی اَهْلِنَا سَالِمِيْنَ غَانِمِيْنَ؁ اٰمِيْنَ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ؁

ژباړه : ای الله دا ستا د نبي او د هغه د جومات او دهغه د حرم سره زما آخري ځل مه کوه او ماته اسانه کړې چې بيا بيا ورته را شم او ورسره پاتې شم ماته بښنه نصيب کړه په دنيا آو آخرت کې او مونږ خپلو کورنو ته په خير سره ورسوه زمونږ دعا په خپل رحمت سره قبوله کړه ای د ټولې دنيا په رحم کونکو کې ډېر رحم کونکيه .

د را روانېدلو په وخت کې خفګان ، غم د اوښکو تويول د پاک ايمان نښه ده کله چې بېرته را ستون شوې او خپله ساحه دې وليده نو دا دعا لوله :

اٰئِبُوْنَ تَائِبُوْنَ لَرَبِّنَا حَامِدُوْنَ

اول به جومات ته لاړ شې او دوه رکعته مونځ به وکوې او د الله تعالی شکر به اداء کړې چې ته يې بېرته په خير سره را ستون کړې بيا به د خپل کور په لوري روان شې او دا دعا به ولولې :

تَوْبًا تَوْبًا لِرَبِّنَا اَوْبًا لَّا يُغَادِرُوْ عَلَيْنَا حَوْبًا

کله چې کور ته ننوزې يو ځل به بيا دوه رکعته مونځ وکوې او د الله تعالى د ټولو نمعتونو په خاصه توګه د حج د اداء کولو د توفيق او په خير سره د بېرته را ستنولو شکريه به داء کړې .

# جنايات

هغه شيان چې په احرام کې او يا په حرم کې ناروا دي دهغې کولو ته په حج کې جنايات وايي جنايات د جنايت جمع ده تيري او تجاوز ته وايي او د هرجنايت لپاره که وړوکی وي او که لوی وي په شريعت کې جزاء مقرره کړل شوېده چې کله جنايت وشي که قصداً وي او که په خطا سره وي هغه جزا پرې لازميږي خو که دا کار څوک قصداً وکوي نو جزاء ورکول يې د ګناه څخه نشي خلاصولی د فديې ورکولو سره به بيا هم ګنهګار وي د ګناه لپاره به توبه وباسي او بښنه به د الله نه غواړي .

جنايتونه مختلف ډولونه لري د مثال په توګه :

هغه چې حج او عمره فاسدوي .

دا هغه جنايت وي چې کله واقع شي حج او عمره وربانديې فاسديږي او بل علاج يې نشته په بل کال کې به بيا حج کول پرې لازم وي دا د امام ابو حنيفه رحمه الله په مذهب کې صرف يو جنايت دی چې په عرفات باندې له درېدلو څخه وړاندې جماع وشي نو حج فاسد او يا د عمرې د ارکانو د پوره کولو څخه وړاندې جماع وشي نو عمره فاسده شوه .

## هغه جنایتونه چې حلاله پرې لازمیږي .

یا په بل عبارت مونږ وایي چې قرباني یا دم وربانديې آوړي چې په چا باندې دم (حلاله) واوړي نو هغوی یو پسه یا په غوایه کې اومه برخه کوي صرف که د عرفات نه وروسته يې جماع وکولو نو بیا وربانديې پوره غوایی دی .

## هغه جنایتونه چې پکې صدقه لازمیږي

ځینې داسې جنایتونه دي چې هغه واقع شي نو په جزا کې يې په کس باندې صدقه لازمیږي د امام ابو حنیفه رحمه الله په مسلک باندې صدقه چې په کوم ځای کې د حج په بیان کې یاده کړل شي او بیان يې نه وي شوی نو هلته نیمه صاع ده له غنمو او یوه صاع ده د وربشو او د امام بوحنیفه رحمه الله په مذهب صاع ۳٦٤۰ ګرامه ته وایي .

## د جنایت په مثل سره بدل .

کله چې په حرم کې څه مړه کړل شي د هغې به اندازه لګول کیږي او په هماغه اندازه خیرات به کیږي تفصیل به يې راشي انشاء الله .

د جنایتونو په اړه یو څه تفصیل ته ستاسې فام را اړوم .

## د احرام جنايات

ګنډلې جامې آغوستل ، د نارينه وو لپاره سر پټول او د ښځينه وو لپاره مخ پټول ، سر خريل ، نوکان پرې کول، عطر لګول ، سر غوړول او داسې نور ...
که دا کارونه څوک قصداً وکوي نو د امام ابو حنيفه رحمه الله په مذهب په دې کس به يا قرباني لازميږي او يا به پرې معينه صدقه لازميږي ځکه ده جنايت قصداً کړی دی او ده ته سهولت نه ورکول نه کيږي او هغه کسان چې دا کارونه د کوم عذر له امله وکوي لکه په سر کې بيماري راشي او دی يې وخريي، او يا پدې پوه نه وي چې دا ناروا دي نو امام صاحب رحمه الله فرمايي چې دا هم قصداً دي او که په هېره سره وشي يا کوم بل عذر وي نو هغه ته پکې اختيار دی چې حلاله کوي که روژه نيسي، که صدقه ورکوي ... تفصيل يې راځي انشاء الله .

## د جامو اړوند جنايات

که چا ګنډلې جامې واغوستې پوره ورځ يا نارينه سر او ښځينه مخ پوره ورځ پټ وساتلو نو دا مکمل جنايت دی حلاله ورباندې لازميږي او که د لږ ساعت لپاره وو يعنې تر ورځې نه کم وو نو

بیا وربانديِ صدقه واجب ده (صدقه مخکې تېره شوه)

## عطر لګول

د امام صاحب په مذهب عطر چې په ځان ولګول شي او که په جامو ولګول شي پدې کې فرق دی.

که په بدن کې یې یو اندام پوره په عطرو باندې غوړ کړو او په یوه اندام یې ولګول نو حلاله وربانديِ لازمیږي مکمل اندام لکه پوره لاس، پښه، سر او که په ټول بدن یې ښه بوی لرونکی شی په یو مجلس کې ولګول نو ددې حکم اوس هم د یو اندام دی او که په مختلفو مجلسونو کې ولګول نو بیا هر اندام بېله جرمانه لري او چې کله کفاره ورکوي نو عطر به له بدن څخه لرې کوي او که یې لرې نه کړل چې کفاره ورکړي نو بله کفاره هم پرې لازمیږي او که تر یو اندام نه کمه ساحه یې په عطرو کړې وه نو بیا حلاله وربانديِ نشته بیا صدقه ده .

او هغه عطر چې جامه ولګول شي که په دومره ځای ولګول شي چې مربع یوه لوېشت کیږي نو بیا وربانديِ حلاله لازمه ده او یا که همدا جامه تر پوره ورځې پورې پاتې شي نو بیا قرباني وربانديِ واجبه ده .

او که په لږ ساحه لګېدلې وي او ټوله ورځ پاتې شي او یا په ډېره ساحه لګېدلې وي خو زر لرې شي نو بیا صدقه ده .
او که د لږ ساعت لپاره وي او یا په لږ ساحه لګېدلې وي او زر لرې کړل شي نو صرف چې یوه لپه غنم خیرات ورکړي نو کافي دي .

## تیل لګول

که د بدن په کومه برخه یې تېل ولګول د امام صاحب په مذهب یې حکم د عطرو دی اګر که هغه بوی نه لري او که د بدن په هره برخه یې لګولي وي نو د عطر مطابق فیصله به پرې کیږي او که بدن یې د کوم مرض له امله غوړ کړو او یا یې په زخم باندې کوم غوړ شی کېښودل نو بیا وربانډې کفاره نشته .

## سر خرېل یا وېښته پرې کول

که چا د سر څلرمه برخه یا د ږېرې څلرمه برخه پرې کړه نو حلاله پرې واوښته که یې قصداً بغیر د ضرورت نه کړی وو او که د ضرورت له امله وو نو بیا وربانډې صدقه لازه ده . او که تر څلرمې برخې کمه اندازه وه بیا وربانډې صدقه ده او که د اوداسه په وخت کې یا په سر کې د لاس وهلو او ګرولو په وخت کې وېښته تویې شي نو

دهغې دې هم څه صدقه ورکړي لکه د وېښته په سر چې يو موټی غنم ورکړي او که چا خپل يو تخرګ له وېښتو نه پاک کړو او يا يې دواړه پاک کړل نو حلاله پرې لازمه شوه او که چا تر يو تخرګ نه کمه ساحه پاکه کړه نو بيا وربانــدې حلاله نشته صدقه پرې واوښته ، او برېتونه د امام صاحب په مذهب په ږېره کې دي څومره چې اخستل شوي وي نو ورته و به کتل شي چې د ږيرې د څلرمې برخې نه دا څومره کيږي نو په هماغه حساب به د صدقې برخه ورکړي (صدقه څومره وي دا خبره مخکې تېره شوه )

## د نوکونو پرې کول

که چا د دواړو لاسونو او دواړو پښو نوکان په يو مجلس کې پرې کړل نو يوه حلاله وربانـدې لازمه شوه او که يې په يوه مجلس کې د يوه لاس نوکونه پرې کړل نو هم پرې يوه حلاله لازمه شوه او که په مختلفو مجلسونو کې يې پرې کړل نو د هر لاس او هرې پښې لپاره پرې يوه حلاله ده او که يې د يو لاس يې تر پنځو نه کم نوکونه پرې کړل نو د هر نوک لپاره وربانـدې يوه صدقه ده .

## سپږې مړې کول او یا له بدن نه لرې کول

سره ددې چې د سپږو څخه ځان پاک ساتل د شریعت حکم دی لکن د احرام په حالت کې دا هم جنایت دی که چا سپږه مړه کړه نو هغه به صدقه کوي چې څه یې خوښه وه ورېه یې کړي .

## په احرام کې ښکار کول

د احرام په حالت کې ښکار کول نا روا کړل شوي دي او د ښکار په اړه باندې په خطا او په قصداً او په سهواً ټول یو حکم دی که چا ښکار مړ کړو او یا یې بل چا ته ور وښودو هغه مړ کړو نو دا ښکار به قیمت کړل شي او هغه قیمت به دوه منصف کسان چې د نرخ او قیمت نه خبر وي هغوی تعین کوي هرڅومره چې شو هغه به صدقه کړي او که د پسه (ګډ) قیمت ته ورسېد نو هغه به واخلي او حلال به یې کړي او که هغه یې زخمي کړي وو نو په کومه اندازه یې چې نقصان ور رسولی وو په هماغه اندازه صدقه به کوي او که د کوم مارغه نه یې بڼکې ووېستې او یا یې بل څه نقصان ور ورسولو نو چې څومره د هغه قیمت کم شوی وي په هغه اندازه صدقه لازمه ده . او که ښکار ته یې داسې نقصان ور ورسولو چې هغه بیا ځان نشي ساتلی لکه د

مارغه نه يې وزر وويستل نو د مکمل ښکار قېمت وربانديې لازم دی صدقه کوې به يې .

## د حرم په اړه جنايات

د حرم په ساحه کې د ننه (چې تر ميقات ور تېر شې) د حلال لپاره هم ښکار کول روا نه دي، د ونې پرې کول يا وېستل روا نه دي که څوک د حرم په علاقه کې ښکار وکوي نو قېمت ورکول يې وربانديې لازم دي او د امام صاحب په مذهب همدا يوه لاره ده د روژې نيولو سهولت هم پکې نشته خامخا به تاوان ورکوي همدارنګه که يې نقصاني کړو ، يا يې د حرم ونه او ګياه پرې کړه نو تاوان به يې ورکوي .

## د احرام په حالت کې جماع او يا نور داسې کارونه کول.

که حاجي تر عرفات نه وړاندې جماع وکوله نو حج فاسد شو بل کال ته بيا حج کوي او همدا حج به هم سر ته رسوي ، او که دا حج دده نفلي هم وي نو بل کال ته وربانديې واجب شو خو د امام مالک صاحب په مذهب به بل ځل دوی دواړه حج ته بيا يو ځای نه ځی او امام صاحب رحمه الله فرمايي چه جدايي يې صرف مستحب ده کله چې ددې حج قضاء کوي نو په هغه کې به يوه حلاله ددې

جماع له امله كوي د امام صاحب په مذهب صرف يو پسه (ګډ) كافى دى .
او كه چېرته چا د عرفات نه وروسته جماع وكوله نو د امام صاحب په مذهب يې حج فاسد نه دى خو د يو غوايي حلاله وربانديې واوښته .
او كه د عمرې د طواف د څلورو شوطونو د پوره كېدلو نه وړانديې چا جماع وكوله نو عمره فاسده شوه بيا به يې كوي او په جزاء كې په ده بانديې يو پسه (ګډ) لازم دى .

د امام ابوحنيفه رحمه الله په مذهب دواعي د جماع (هغه شيان چې جماع ته تشويق كول كوي) هم نا روا دي او كه دا هم چا وكول نو حلاله پرې واوښته اګر كه انزال يې هم نه وي شوى .

# پای